پښتو ته دوهم ادبی سوغات

# دَ
# عبدالقادر خان خټک
# دیوان




قندهار

# دَ عبدالقادر خان ختټک
# دیوان

چې دَ اعلیحضرت پښتون محمد ظاهر شاه په عصر کښ دَ ع،ش سردار محمد داؤد خان د قندهار ملکی او لښکری مشر په امر او پښتو پالَنَه، په قندهار کی په هغو مصارفو چه دَ دارالحکومګئ په واک دِی، له دوو قلمی نسخو څخه لمړئ پلا چاپ او خپور سو.

## مدون او مصحح: عبدالحی حبیبی

دَ طلوُع افغان مدریر
قندهار: تله د ۱۳۱۷ کال
لمړی چاپ (۵۰۰) جلد



# اهداء

دَ پښتو ژبې دَ ادب دا دوهم اثر، هم د ځلمی ښاغلی اعلیحضرت محمد ظاهر شاه پښتون ټولواک و لوَړ حضور ته وړاندی کیږِی، چه دَ دُوی عصر دَ پښتو او پښتونوالی دَ ژوندون او نهضت دوره دَه.

قندهار ۱۰ دَ تلی ۱۳۱۷
(محمد داؤد)

**دَ مدون له خوا**

# دَ کتاب له ویونکوُ سَره یَو څو ویناوِی

لس نیم کاله دمخه چه زمونږ په وطن کی دَ انقلاب او ورانئ اوربل وُ، ما ته دَ پښتو دَ یوه لوی ادیب او شاعر، عبدالقادر خان ختټک دَ خوشحال خان ختټک دَ زوی یو نادر قلمی دیوان په لاس راغَی، هغه وخت خو زما په زړه کی لا هم نه را گرزیده چه یَو وخت دِ زه دَ پښتو دَ ادب، دَ دغه گرانبها اثر په طبع او نشر کامیاب سم.

وروسته چی دَ وطن پر افق دَ نجات لمر را وختی، او ورځ په ورځ دَ وطن له نورو چارو سره علم او ادب هم ښه رونق وموند، نو هر کله ما غوښته، چه دَ پښتو دا ورکی مرغلَرِی و خپلو ورُونو ته وسپارم، پنځه کاله دمخه خوشبختانه دَ دغه دیوان یَوه بله بشپړه نسخه هم ما په قندهار کی وموندله، دا نسخه تر هغی پخوانئ نسخې خوشخطه او کامله او صحیحه وه. په ډیر شوق می دواړه نسخې سَره مقابله کړې، او یوه صحیحه او بشپړه نسخه می له دواړو څخه نقل کړه.

دا قیمتی اثر ما ته دغسی پروت وُ، او دا ارمان می په زړه کښ وُ، چه کله به دغه امانت، پښتنو ته ورسَوَم؟ او دَ خپل زیار او منبو د خوږه میوه به وخورم! ځکه چه دا کتاب تر اوسه هیچیری ندَی چاپ شوَی، او ډیر نادر دَی، نو به دَ پښتو ژبی مینانو هم هر کله ما ته دَ دغه دَ طبع او نشر تشویق را کاوه، او تل به ئې هیله کوَله.

دَ اعلیحضرت پښتون ټولواک محمد ظاهر شاه، دوره خو دَ پښتنو او دَ پښتو دَ نهضت او لوړتیا دوره دَه، په دغه مبارک عصر کښ مونږ پښتانه ډیرو خپلو زړو ارمانو ته رسیدلی یُو، او دَ پښتو ژبی روزَنه او پالَنه هم په ښه ډَول کیږِی!..

څو میاشتی لا نه دی تیری شوِی، چه مونږ دَ قندهار دَ ښاغلی او ځلمی ملکی او عسکری مشر سردار محمد داؤد خان په پښتو پالَنه، دَ پښتو دَ پلار خوشحال خان ختټک ضخیم کلیات بشپړ طبع او خپور کَی، چه دَ هغه کتاب له تصحیح او تدوین او طبع څخه فارغ شوم، نو دَ خوشحال خان د نومیالی زوی عبدالقادر خان دیوان چه دا څو کاله سم شوی او تصحیح کړی را څخه پروت وُ، دَ هغه ښاغلی پښتو پالوُنکی مشر حضور ته وړاندی شو، دوی چه دَ پښتو او پښتونوالی سَره دَ زړه مینه لَرِی، ژر ئې دَ دغه کتاب دَ طبع امر هم وفرمایه، او زما دغه زوړ ارمان الحمدللّٰه تر سَره سو.

نو دغه زمونږ دَ پښتو دَ ادب دوهم سوغات دَی، چه اوس ئې پښتنو ورُونو ته سره دَ یوې مفصلی مقدمې وړاندِی کوُو، او ټینگه هیله لرو، چه ژر تر ژره دغسی ډیر قیمتی سوغاتونه نور هم خپلو پښتنو ته وړاندِی کړُو، او دَ پښتونوالی په رڼه دنیا کښ د پښتو ژبی او ادب ته یَو کوچنوټی خدمتگی دَ خپلو پښتنو او پښتو غوښتونکوُ ښاغلو مشرانو دَ پالَنِی په سیوری کښ وکړای شو، که خدای کوَل!

(قندهار نوی ښار، ۲۵ دَ وږی ۱۳۱۷)
دَ دې کتاب مدون وا مصحح او ناشر:
عبدالحی حبیبی دَ طلوع افغان مدیر

# توضیح

لمړیَ نسخه د دې کتاب اصل ده، متأسفانه تاریخ نلَری، دوهمه نسخه چه دَ کتاب تصحیح او بشپړ توب له هغې څخه شوَی دَی دَ لیکلو تاریخ ئې داسی دی: (روز جمعه بتاریخ ۲۳ شهر شوال ۱۱۸۲ هـ). په دې کتاب کښ چه هر بیت یا بدلی یا قصیدې یا رباعی او منظومې ته داسی o نخښبه لیکلې وه، دغه ټول هغه زوائد دی چی په اصلی نسخه کی نه وه، او له دغه دوهمی نسخې څخه پکښ زیات شوی، او په یوه کوچنیَ دائره سره نخښبه او ټاکلیِ شوِی دِی.

## فهرست





# دَ پښتنو پیاوړی ادیب عبدالقادر خان خټک

**پیژندنه**

عبدالقادر خان دَ خوشحال خان زوی دَ شهباز خان لمسی، دَ یحییٰ خان کړوسَی، دَ ملک اکوړي کوسَی دَی، دَ پښتو ژبې یَو پیاوړی شاعر او نامتو لیکوُنکی او ویُونکی دی چې دَ خټکو دَ مشرانو له لوړی کورنی څخه را وتلَی، او پښتو ژبې ته ئې ښه او لوړ لوړ خدمتونه کړِی دِی!

عبدالقادر خان، دَ پښتو دَ پلار خوشحال خان خټک یَو مشهور او نومیالَی زوی دَی چه پخپله کورنۍ او اولس کښې ئې دَ خانۍ او مشرتوب ښه مقام درلود.

دَ عبدالقادر خان دَ تولد او وفات کلونه موږ ته ندِی ښکاره، دَ ده دَ پلار خوشحال خان له ویناوُ څخه څرگندیږی، چه دَی د خپل پلار په ژوندون ور سره یو ځای[1]، او هر کله پلار له ده څخه خوښ وُ.[2]

**دَ ده عمر**

عبدالقادر خان دَ خوشحال خان د مړینی په کال (۱۱۰۰هـ=۱٦۹۱ع) هم ژوندَی وُ او دَ خپل پلار پر مرگ ئې مرسیه ویلې او ژړا ئې کړې دَه، مگر دَ دغی مرثئې څخه ښکاره دَه، چه دَی د پلار پر مرگ حاضر نه وُ، لکه چی وایی:

په ارمان دَ ملاقات له موږه ولاړې    ځموږ ستا د لیدو ژمنه په عقبا ده

تر ۱۱۱٤هـ کاله پوری عبدالقادر خان یقیناً ژوندی وُ، ځکه په دغه کال دَه یَوَه بدله ویلې ده، چه دا بیت له هغې څخه دَی:

سن زر سل دَ جدایۍ څورلس دَ پاسه    دا غزل مي په بیاض باندِی رقم کړ

په ۱۱۱۲هـ کال کی ده دَ خپل کتاب یوسف او زلیخا نظم پای ته رسَولی دَي، د دې کتاب په پای کښې خپل زوی ته نصیحت کَوی، او دَ سپین بږیرتوب حال بیانَوی چه ویښته می سپین او زوړ شوم:

په سن راغلم تر پنځوسه    په غفلت کی یم تر اوسه
ویښته سپین خاطر می تور شو    بد خصلت می کله نور شو
دَ ځوانۍ بهار خپور شو    رنگ دَ باغ دَ گلو نور شو
پژمرده دَ ځوانۍ باغ شو    دَ هر گل فراق می داغ شو

له دې شمیره که موږ استنباط وکړو، نو چه په ۱۱۱۲هـ کال عبدالقادر خان دَ ۵۰ کالو وُ البته دَ ده د تولد کا به ۱۰٦۲هـ وِی، چه دَ خپل پلار پر ٤۰ کال زوکړَی دَی. دَ عبدالقادر خان دَ عمر دَ پای ورځی ندِی ښکاره، مگر دَ ده له کلامه موږ لاندینی استنباط کوَلای سو؛ دَی دَ یوې بدلی په پای کی وایِی:

هر کاره به بهادر شاه چیری خبر کا    حال عبدالقادره مه وایه سپړلی

له دغه بیته اوځاریږی، چی دَی د بهادر شاه په عصر کښې ژوندَی وُ، بهادر شاه معظم دَ اورنگزیب عالمگیر مشر زوی وُ،

---

(۱) دَ خوشحال خان خټک کلیات ص ۹۵۱ دَ قندهار طبع.

(۲) دَ خوشحال خان دَ کورنۍ احوال او وقایع مو دَ ده دَ کلیاتو په مقدمه کی مفصل لیکلی دِی، دلته ئې مکرر نه لیکُو، محترم ویونکی دِ هغه ته رجوع وکړی.

چه دَ پلار تر مړنی وروُسته په ۱۱۱۸هـ کی پاچا شوی او په ۱۱۲۳هـ کښ وفات شوَی دَی.

نو تر ۱۱۱۸هـ پوری دَ عبدالقادر خان ژوندُون یقینی او ورُوسته ښکاره ندَی، تر دې زیات کوم تحقیق دَ ده دَ عمر په خصوص کی دَ ده له کلامه نه کیږی، او نه چا ضبط کړَی دَی.

## دَ وطن بیلتون

دَ خوشحال خان دَ کورنئ سرو، اکثرو دَ وطن خواهئ او آزادئ غوښتلو په جرم، دَ وطن بیلتون گاللَی، او دَ مغولو پاچهانو سَره دَ خپلواکئ دَ ساتَنِې دپاره په میرانه جنگیدلی دِی، نو ځکه ډیر له دوی څخه دَ مغولو له خوا له خپلی مینی څخه بیل شوِی، او دَ هند په مختلفو ځایو کی یا بندیان یا نفی وَه.

عبدالقادر خان هم په دغه ډله کی دَ عمر ډیره برخه دَ هندوستان په ښارو کی تیره کړې او دَ خپله گرانه وطنه بیل وُ. له کلامه ئې ښکاره کیږی چی په هندی ژبو هم څه نه څه پوهیدَی، او دَ هندوستان په دنیا کښ هر کله دَ خپل وطن په بوی غوړیدَی، او د ده مړاوَی زړه چه دَ بیلتون اور سوَی وُ، دَ وطن نری نسیم پر وجد او نشاط او نڅار راوستَی:

باد ئې بوی عبدالقادره سحر راوړ      شگفته لکه غنچه په دغه باد شوم

یا:

دَ اشنا له لوریه خط را لرَه راغَی      بیا می اور په زړه تازه دَ اشتیاق شه

عبدالقادر خان زموږ پښتون ښاغلی ادیب دَ هندوستان په نا اشنا دنیا کی فقط درې ملگری درلوده:

چی پرې غم علطَوم درې می محرم دی      یو قلم، دوهم کتاب، دریم اشعار خپل

پښتون ادیب خو پخپله خوږه ژبه شعرونه وَیَل، او دَ پښتو ادبیاتو ته ئې رونق ورکاوه، مگر افسوس چه دَ بیلتانه په مځکه کی څوک دَ ده په ژبه نه پوهیده، او پښتون ملگری ئې غوښتَی:

دَ سخن خوبی همه لَرم موجوده      زه عبدالقادر محتاج دَ سخندان یم

دَ وطن مینی او شوق هر کله دَ ده خوږمن زړه ور ناقراره کاوه، دَی تل د مینی دَ لیدو لیوال وُ، او له لیری ئې دَ زړه له کومی سلامُونه د وطن پر یارانو نثارَوَل:

گنُدِی وِی چه سَرَه بیا په یَوَه ځای شو      په هغو زموږ سلام چه په وطن دی

## معاصرین

عبدالقادر خان په هغه مځکه کی زوکړی، او دَ خټکو په هغه ادبستان کی لوی شوَی وُ ، چی دَ ده شا و خوا خپلوان ټوله ادیبان او شاعران وه، دَ ده پلار خو دَ پښتو شعر پلار دَی، ورونه ئې لکه اشرفخان هجری او صدر خان او گوهر خان او اسکندر خان، او نور وریرونه او د کورنئ سرِی ئې لکه افضل خان او کاظم خان شیدا، او علی خان ټول دَ پښتو ژبی نومیالی شاعران او ویُونکی دی چه دا ټوله دَ عبدالقادر خان معصرین او خپلوان یا دَ خوشحال خان دَ ادبی مکتب فیض میندُونکی وه، او عبدالقادر خان په دغه ادبی کورنئ کی روزَل شوی دی. علاوه پر دغه په هغه وخت کښ شاوخوا نور پښتانه ادیبان هم وه، چی یَو له معاصرینو څخه دَ عبدالقادر خان مرحوم عبدالرحمن بابا وُ، دَ رحمان بابا ادبی شهرت تر خوشحال خان لږ ندَی، دَی هم د مغولی اورنگزیب په عصر کښ ژوندَی وُ.[۱]

---

(۱) وگوری د پادری هیوز مقدمه دَ کلید افغانی طبع ۱۸۹۳ع پخپله رحمان بابا وایی:

و دارا او اورنگزیب وته حیران یم      چه ئې څه چاری واقع شولې تر میانه

عبدالقادر خان دَ ده سَره شعری او ادبی مسابقې لَرِی، دَ يوې بدلی په پای دَ رحمان بابا په ځواب کی وائی:

زه ختټک دَ يار په غم تازه تازه شوم     غوريه خيل رحمان که شو ور ځنی ستړی

بل دَ عبدالقادر خان له روحانی لار ښوونکو او معاصرينو څخه شيخ سعدی لاهوری دَ شيخ آدم بنوری شاگرد دَی، چه دَ ده مرشد وُ، او ما اروېدلِی دِی چی په طريقت کی ئې عبدالقادر خان خليفه هم وُ، د دې کتاب په ۲۲٦ مخ کی عبدالقادر خان دَ خپل مرشد دَ وفات تاريخ په ۱۱۰٦هـ کال ويلی دی.

په دغه ډَول نو عبدالقادر خان په طريقت کی په درې مرتبې و حضرت مجدد ته رسيږِی، چه شيخ بنوری ئې شاگرد وُ.

نور د دې پرديس اديب ژوندُون اکثر په پرديسی او بيلتون کښ تير شوَی دَی، ځکه نو دَ ده سوانح هم ښه ښکاره او څرگند ندی.

## دَ خوشحال خان په ادبی مکتب کی دَ عبدالقادر خان مقام:

دَ پښتو ژبی دَ شاعریَ او ادب په تاريخ کښ خوشحال خان د هغه مکتب مؤسس او ستَه اينبوؤنکی دی، چی موږ ئې دَ ده په نوم نومړی کوؤ، دَ پښتنو دَ ادبياتو له پلَټَنِی څخه موږ ته ښکاره کيږی، چی دَ دې ژبی دَ ليک او لوست او شعر او ادب، څو مختلف مکتبونه دِی، چی د هر مکتب ډَول او دَ ليک او ويَلُو طرز او سبک هم ظاهراً هم معناً بيل وُ، لاندی ئې لنډ بحث ولوَلَی.

۱. دَ پښتو دَ ليک او ادب لمړی مکتب زما په عقيده دَ اخند درويزه ننگهاری مکتب دَی، که څه هم اخند صاحب پخپله دَ دې مکتب مؤسس ندَی، او تر ده دمخه څه سابقين لَرِی[١] مگر هغه لوی خدمت چه ده د دې مکتب سبک ته کړی دَی، نو حق لَرِی چه دَ ده په نوم ياد شی د دې مکتب سبک داسی وُ:

(الف): نثر دَ نظم په ډول او لحاظ دَ قافئې په نثر کښ، مگر دَ علم عروض رعايت لږ وُ يا نه وُ. (ب): مضمون دَ شعر اکثر دينی او تبليغی يا روحانی او عرفانی وُ، چه څه نه څه د تصوف روح په کښ وُ، او له اسلامی علومو څخه لکه فقه، تفسير، حديث استنباط کيدی او ډير ځله رد دَ ځنو ملحدينو وُ، چه په هغه وخت کی دَ تاريک پير (پير روښان) دَ افراطی تصوف تر جنډیَ لاندی راوتلی، او دَ خيرالبيان[٢] په کتاب ئې عمل کاوه دَ اخوند درويزه د سبک ملگری اخوند قاسم د فوائدالشريعه خاوند، پاپنخيل شنواری[٣] او بابو جان چه تور کافر وُ او مسلمان شوی وُ[٤] او نور دَ مرحوم اخوند زامن او کورنیَ وه، دَ تاريک پير ملگری ميرزا خان انصاری[٥] او نور وه.

---

(١) لکه شيخ مالی يوسفزی.

(٢) مخزن الاسلام د اخوند درويزه وگوری.

(٣) د مسټر راورټی د پښتو گرامر مقدمه د کلکتې طبع ۱۸۵٦ ع.

(٤) جی، ايچ راورټی.

(٥) دَ اخوند درويزه له بيانه څخه ښکاره کيږی، چی بايزيد بن عبدالله چی په پير روښان مشهور وُ، پلار ئې اصلاً قندهارَی وُ، او دَی به دَ کانی کوړم په اورمړو کښ اوسيدی. دَ هندوستان او بخارا او تورکستان سفرونه ئې کړی وه، او يَوَه فلسفی رويه ئې درلوده چی دَ تصوف دَ حلول خوا ته نژدې وه، زما په خيال چی پير تاريک دَ هغی ډلی دَ فلسفې او نيم مذهبی افکارو څخه اخيستنه کړې وه، چی دَ مصر د الفاطمی کورنیَ پاچهان وه، او په ايران کښ دَ باطنيه او اسماعيلی او قرامطه په نوم مشهور وه، ډيرو مؤرخينو او ابو ريحان بيرونی دَ کتاب الهند خاوند په ٤٢٤هـ کښ د قرامطه ۆ غلبه پر ملتان هم ليکلې دَه چه وروسته نو دَ زين الخبار گرديزی، او ابن اثير او ابن خلدون په قول دغه ملاحده سلطان محمود غزنوی له ملتانه ورک کړه، دَ دوی غلبه پر ملتان يوازی نه وه، بلکه دَ ناصر خسرو بدخشانی له تأليفاتو څخه ښکاره ده چه دَ دوی اثر تر بدخشانه او ترکستانه رسيدلَی وُ، او هر ځای ئې په غرو کی پټ مراکز درلوده چه دَ الموت کلا او دَ حسن صباح تحريکونه ټوله تاريخونو ضبط کړيدی.

۲. دوهم مشهور مکتب دَ خوشحال دَی، چې دوی عروضي شعر په پښتو کښ ډیر کړی دَی، دَ خوشحال خان دَ مکتب شاګردان ټوله ساده ویُونکِي دِي، کلام ئې ګرانښت او تنقید نلَرِي، او دَ خپلو معاصرینو پارسي شاعرانو سَره څنګ پر څنګ ځِي. دا مکتب بیله دَ خوشحال خان د کورنۍ نور ډیر ملګری لَرِي، لکه رحمان، ارزاني خویشکی، واصل، عبدالعظیم، قاسم علي افریدي، عبدالرحیم هوتک، شمس الدین کاکړ، پیر محمد کاکړ او نور...[۱]

دَ دوی کلام له عشق، او اخلاقو او څه نه څه له تصوف او عرفانه ډک دَی، دَ عروض او قافئې او د فصاحت او بلاغت دَ اصولُو بشپړ مراعات کَوِي.

۳. دریم مکتب دَ حمید مهمند سړبني ماشوخیل دَی، چې دَی هم دَ مغولو په عصر کې ژوندی وُ، په ۱۱۳۷هـ کال ئې شاه ګدای لیکلی دی[۲]، دَ حمید دَ مکتب شاګردان یا ملګری کاظم خان شیدا، دَ خوشحال خان کړوسی دَ اشرف خان لمسَی دَ افضل خان زوی دی او په قندهار کې میرزا حنان[۳] دَ ده دَ مکتب او سبک پیرو دَی، نورُو پښتو شاعرانو هم دَ ده دَ سبک اثر قبول کړَی دَی، مګر لږ لږ.

دَ ماشوخیل حمید بابا دَ شعر سبک ظاهراً هغه عروضي شعر دَی، مګر دَ پارسي شعر له هندي سبک سَره ډیر نژدیوالَی لَرِي، دَه ته موږ د پښتو بیدل یا صائب وَیلای شو، دَی په تشبیه او استعاره او تلازم کښ پوره نازکخیال دَی او لکه بیدل دغسې نادر تشبیهونه او تلازمات لَرِي، لکه په پارسي ادب کښ چې هندي سبک دَ بخارا او ایران له سبک څخه بیل دی، په ښتو کې هم دَ حمید سبک له نورُو څخه امتیاز لَرِي. ځکه نو پښتانه شاعران دَی موشګاف حمید بولي.[٤]

اوس چې تاسې ته لنډ دَ پښتو ادب دَ مشهورو ادبي مکتبو بحث وسو، نو به وګورو چه عبدالقادر خان پخپل ادبي مکتب کښ کوم مقام لَرِي؟ او دَ نورو څخه ئې څه اخیستي دي، او دَ ده د کلام ښیګړې او خصوصي مزایا څه دِي؟

دَ خوشحال خان په کورنۍ کې دَ ده دوه زامن په ادب او شعر کې تر نورُو ډیر لوړ را وتلي دِي، چې کله کله دَ وینا په ښیګړو کښ له پلاره سَره سیالي نه، بلکه تر ده لوړتوب هم کَوِي.

دا دوه دَ ادب ښکلي ګلان او د پښتو دَ شعر دَ بڼ خوشنوا خاچوڼې (بلبلان) اشرف خان هجري او عبدالقادر خان دی، دَ هجري دَ یو څو بدلو څخه چه مسترِ راورټي نشر کړي دِي، داسې ښکاره کیږِي ، چه د شعر په فن کښ لوی لاس لَرِي، او دَ ده کلام متین او خوږ او ساده او برجسته دی، که ما دَ ده دیوان لیدلَی وای، نو به مې دَ ده کلام د عبدالقادر خان سَره پرتله کړي وای، افسوس چه دَ پښتو ادب دا نایاب اثر ورک دَی، او فقط د څو تنو خارجي قدر دانانو په لاس کښیوتلَی دَی، خوښ یُو چې دَ عبدالقادر خان مرغلَرِي تر خاورُو نَدِي لاندې شوی، او موږ ئې اوس پښتنو ته وړاندې کوُو.

زما په عقیده دَ خوشحال خان به مکتب کې عبدالقادر خان تر ټولُو لَمړی دَی، دَ ده د کلام مزایا دا دِي:

## دَ عبدالقادر خان دَ وینا ښیګړې

۱. دَ عبدالقادر کلام ساده دَی، له تعقید او درُوندوالِي څخه تش دَی، دَ هر راز تخیل پر ادا مقتدر دَی، ګران مضامین په ساده ډَول وَیلای شِي، په خوږوالي او سلاست کښ مثیل نلَرِي، تمثیلات ئې طبیعي او مثبت دی، په تخیل کښ ډیر وَ ماوراء

---

(۱) وګوری دَ پښتو شعر تاریخچه.

(۲) د پښتو شعر تاریخچه لیک د حبیبي.

(۳) د پښتو شعر تاریخچه لیک د حبیبي.

(٤) لکه چې مرزا حنان قندهاري وایې:

بل حمید موشکاف دَ خیال په شعر     څه به وایم ناسفته دُر ئې پیَیل

الطبیعه ته پرواز نکَوِی، دَ حس او تعقل تر دائرې نه وَزِی، دا هغه دَ سهل ممتنع مزیت دَی چی دَ خوشحال خان له کلامه څخه ده اخیستی، او ډیر ئې پوخ او رنگین کړَی دَی. د دې بدلی متانت او سلاست او طبیعی سبک وگوری:

په وَیَل دَ کوم بې رحم ځیگر ورځې چی دا هسی ډیر پس رایشې بیا ژر ځې
دَ عاشق دَ سترگو غر نه حجابیږی ولی هسی شان مخ نغښتی په میزر ځې
دَ لوئیِ په مقام به هاله کښینې که دَ ورکړی دَ مړانی په وزر ځې
دَ هوسیو سترگی توری دَ باز سرې دی خونریزی تر تورُو سترگو کالا زر ځی
تصدیع مکړه کشتن گاه وته پر سر ځِی که په وژلو دَ بیدل عبدالقادر ځې

## حقیقت او ابتکار:

۲. دَ عبدالقادر خان په کلام کښ ډیر ځله ابتکار او دَ تخیل بداعت لیدَل کیږی چه د نورُو په کلام کی لږ دی.

په شعر او شاعری کښ خو نوې موضوع میندل، او نوی فکر ایجادَوَل ډیر مهم دَی، دَ استادیِ معیار، او دَ کلام دَ پوخوالی نخښه خو هم دغه دَه، زموږ عبدالقادر خان په دې خوا کښ هم ډیر بډای دَی، دلته به ئې دَ یوه لنډ مثال په لیکنَه اکتفا وکړُو:

شعراء ډیر په تلاښ کښ دِی، چه دَ محبوب و مخی ته دَ تقدیم وَړ متاع ومومی، هر څوک غواړی، چی نوې تحفه تقدیم کړِی، په دې تلاښ کښ شعراؤ ډیر نوی متاعونه میندلی او زښتی مضمون آفرینیِ ئې کړِی دِی، ځان او زړه خو هغه لمړنی متاعونه دِی، چه په دې محضر کی وړاندی کیږِی، یَو شاعر دَ یار په کوڅه کی زړه به لاس گرزیدَی مگر د تقدیم موقع ئې نه و میندلَی، له پریشانیَ څخه زړه ځنی ورک شو:

**دل بدستم بود می گشتم بگرد کوی دوست از پریشانی نمیدانم کجا انداختم؟**

دَ بل بیچاره څخه هم دَ بیلتون په تیاره کښ، هغه متاع ورک دَی، چی دَه به یار ته وړاندیِ کاوه نو نارې وهی:

**در شبستان غمت دل ز کفم گم گردید ای چراغت بکف از رنگ حنا زود بیا (واقف)**

خواجه حافظ شیرازی هم تر ځان بله گرانبها متاع نه وینی، چی دَ یار په پښو کی ئې نثار کړِی، مگر افسوس چه دا متاع هم په هغه لوړ حضور کښ دومره قیمت نلری:

**نثار خاک رهت نقد جانمن هر چند که نیست نقد روان را بر تو مقداری**

سر بازی هم دَ مینی سَره تړلې دَه، که څه هم هر مَیَن سر نه بایلی، او په دې میدان کی نه دریږی:

**به خاکپای عزیز تو سر نگردانم وگر زدست فراقت بسر بگردانی (حافظ)**

سعدی په دې لار کښ یَو پل دمخه ږدِی، سر و ځان هم د تقدیم وَړ نه گڼی:

**من چه در پای تو ریزم که پسند تو بود؟ سر و جان را نتوان گفت که مقداری هست**

په دې دَول شاعرانو ډیر فکرونه کړِی، او دَ تخیل اسان ئې پر دې ډگر ځغلَولِی دِی، دَ سرو ځان متاع ئې دومره واره وړاندی کړَی دَی، چی اوس بالکل فرسوده او زوړ دَی، زما په عقیده خو دغه تحفه په مینه کښ یو غیر طبیعی تحفه ده، ځکه چی دَ ذات حب او دَ ځان گرانښت په انسانانو کی یَو فطری کشش او جذبه دَه، او دغه غریزه په انسان کښ مختلف ډولونه او تظاهرات لَرِی، عشق څو دَ فنا مقام ته نه وِی رسیدلی تړوله دَ دغه فطرت، مختلف اَشکال دِی، څو وصل او فنا نه وِی مینده شوې، نو دَ بیلتون او فراق پر دنیا دَ حب ذات په دائره کښ سر بازی هم شاعرانه بلند پروازی او مافوق الطبیعه تخیل

دَی، ځکه چه ځان وِی، حب ئې سته، چی حب دَ شِی وِی، نو ئې قربانوَل او واری کَول هم نه وِی.

(دَ فنا او وصال مقام بیل دی، زموږ شعراء خو تل د بیلتون له ویره نارې او کوکاری وهی) نو که وویل شی، چه د شاعرانو جانبازی او سر بایلَنه کورټې یَوَه شاعرانه دعوٰی ده، بې ځایه به نه وِی، له دغه جهته که یَو ویونکی او شاعر دَ تخیل په دنیا کی یَو داسی متاع ومومی، چه دَ هغه وړاندی کَوَل دَ مین مخی ته دَ ده مقدور، او په عین حال کښ فطری او طبیعی وِی، نو دا به دَ شاعرئ دَ تخیل کمال او حقیقت او لوړ توب وی!

ژړا دَ انسان له طبیعی مظاهرو څخه ده، چه دَ نفسیاتو دَ مخصوصو عواملو نتیجه ده، عبدالقادر خان غوښته، چه دَ خپل مَین حضور ته داسی تحفه وړاندی کړی، چه چا نه وِی تقدیم کړې، دَ ده شاعرانه بدیع تخیل او دَ ابتکار طبیعت وگرزیدَی، دَ خپلی ژړا او سرو اوښکو له طبیعی بهیدو څخه ئې کار واخیست، په لَمن کښ ئې د اوُښکو سره غمی سَره ټول کړه، ولاړ په ډیر احترام ئې دَ مَین مخی ته وړاندی کړه او وې ویَل:

سرې سرې اُوښی دِ پر مخ عبدالقادره! و خپل یار ته دَ یاقوتو مهمانی ده

وگورَی په څه سلاست او سادگی، یو نوَی او بدیع تخیل، دَ الفاظو په قالب کښ توی شوی دی! چه دَ طبیعت په لمَن کښ یَو ابتکار دَی، او دَ شاعرئ په دنیا کښ دَ یاقوتو مهمانی یَوه نوې میلمستیا ده، چه تر اوسه څوک بې عبدالقادر خانه دَ مَین پر داسی میلمستیا ندی مؤفق شوی!...

## اجتماعی افکار او اخلاق

۳. عبدالقادر خان دَ اجتماعی ژوندُون دَ ښیگړو په بیان کښ هم ډیر مقتدر دَی، هغه اخلاق چی په ټولَنی ژوند کښ سړی ورته اړ دی، په صراحت سرَه ئې ښئی، او له هری خوا هغه ښیگړی بیانوِی، چه په ژوندُون کښ برَی او ظفر پوری موقوف دی!

زیار او منښود دَ انسان دَ بری یَو لوی عامل دَی، پوهانو او ادیبانو په ډَول ډَول دا کوښښ تأکید کړَی دَی حضرت جامی وائی:

**هر چند فلک گرم عداوت گردد دوری برسد که رنج راحت گردد**
**رو قطرهٔ چند از عرق سعی بریز شاید عسرت بدل بعشرت گردد**

صائب وائی:

**اینکه روزی بی تردد میرسد افسانه ایست پنجهٔ کوشش کلید رزق را دندانه ایست**

عبدالقادر خان په یوه ښکاره او بدیهی مثال دا مسئله داسی ثابتَوِی:

ژرنده هاله څه حاصل کاندی چه گرزی یَو زمان قراری مکړه له طلبه!

دَ اجتماع په دنیا کښ، سعادت دَ هغه ملت نصیب دَی، چه یَو د بله ئې افراد، ضرر نه سره رسَوِی، بې دغه اساسه دَ اجتماع وجود هم مشکل دَی، ژان ژاک روسو او نور اجتماعی پوهان، دَ اجتماع تړون social contract سټه هم پر دغه ایږدی چه ”تر هغه ځایه آذاد ئې چه بل چا ته مضر نسې“ عبدالقادر خان په دې لاندینی بیت کی د اجتماع رواداری او پیرزوینَه تر دې اندازې غواړی، چی دَ خپلی گټی دَپاره هیڅکله دَ چا بدی او تاوان نه غواړِی، لکه چی وائی:

چی سبب ئې دَ دوزخ ځما کشتن وِی بیا دِ نه موم دا هسی شهادت!

په دې بیت کی هم دا دَ اجتماع اس اساس او دَ اسلام مهم تعلیم داسی تصویر شویدی:

په دا دوه حرفه ادا مسلمانی دَه هر چه نه پسندې په ځان په چا مه پسنده

عبدالقادر خان یوازی دَ روغی د میدان میړه ندَی، بلکه دَی دَ خپل پلار په ډَول یو توریالَی ادیب دَی چه په ډیرو جګړو کښې ئې دَ پلار سره ملګری کړې ده، دَی په دنیا کی دَ حیات فلسفه، او دَ بری لار هم دَ توری زور بولِی، په نوې دنیا کښې هم دَ فرانسه مشهور اجتماعی میړه رسو Rousseou او دَ ارتقا دَ نظرې دَ خاوند ډاروین فلسفه پر دغه وَلاړه دَه، چه دَ ژوندُون حق قوی لَرِی، او ضعیف مضمحل کیږِی، دَ انګریزی ژبی یو بلیغ متل دَی: might is right یعنی "قوت حق دَی".

دا فکر دَ اوسنیٔ دنیا دَ سیاست او اخلاقو او اجتماع سَتِه دَه، عبدالقادر دا دَ حیات فلسفه او دَ بری لار داسی ښئی:

چه دَ توری مخ ئې سور کړ په میدان کی هم هغه سرخ رویی یوسی له نبرده

عبدالقادر خان په ژوندون کښې دَ لوړ همت او د پښتونوالی دَ ننګی تر دې حده پوری پر خوا دی:

مرګ له تندی په مذهب ځما بهتر دی نه ژوندون دَ دون همتو په اوبو

یا دا:

سخت دَی دَ نیمګړیو طبیبانو ناز تر مرګه مرګ ته غاړی کښیږده دارو مکوَه بیماره

## سیاست او مشرتوب

عبدالقادر خان دَ قام د خانیٔ لوَړ مقام لیدلَی، او دَ داسی پلار په لَمن کی پاللَی شوَی دَی، چه دَ خپل عصر یَو آزادی خواه مشر وُ، نو دَی په سیاست او دَ مشرتوب په اصولو هم ښه پوهیږِی، او هر کله دَ مغولو دَ حاکمانو پر ظالمانه سیاست سخت تنقیدونه کَوِی.

دَ عبدالقادر خان په نظر کی مشرتوب او پاچهی صرف دَ قوم خدمت او دَ اولس دَپاره زیار او دَ ښیګړو مبنود دَی:

ځوانمرد هغه دَی چه لکه شمع دَ ځان په سولو مجلس کا جمع

دَ بل دَپاره که په خندا وِی په مخ ئې درومی باران دَ دمع

په دې رباعی کی دَ مشرتوب او قیادت بدیع تصویر وَګورَی، چه دَ مشر فرایض او وظائف ئې څنګه په صراحت ویلِی دِی، نو دَ ده په نظر کی حقیقی دَ قوم خواخوږِی او میړه هغه دَی، چه خپل ټوله مفاد او ګټه تر قوم قربان کړی او ځان هم په دغه لار کی بایلِی!

عبدالقادر خان په اجتماع کښې دَ ظلم بد نتائج په داسی اوښارو مثالونه ښه را ښئِی:

چی می اوس کړې په مظلومو رډِی رډِی غافل مشه دَ دیو سترګو دَ وتلو

بل ځای تر دې لا ښه او څرګند وائی:

دَ ظالم دَ سر د تاج لالونه ندی په تندی ئې له دوزخه اخګر ووری

دَ خانیٔ او مشرتوب اصول دَ عبدالقادر خان په نظر کی دا دِی:

دَ هر خان چی نه ډوډیٔ وی نه توره ښه ځواب ئې دربان وکا چی خان نسته

دَ قدرت پر وخت زړه دَ چا زهیَروَل، هم دَ میړه کار ندَی، عبدالقادر خان د دې نتائج داسِی وائی:

چه د زړه تر کمر پریوزی ریزمریز شی خدای دِ پرې نه باسی څوک لدې کمره

په پښتنواله کښې میړه او ښاعلی هغه دَی، چه دَ قدرت پر وخت عفو او بخښنه ولَرِی:

چه غلیم ئې تښتیده له ځوانمردیٔ دی ئې عفو په هنګام دَ دسترس کړه

ښندنه او سخاوت هم دَ مشرتوب یَو لوی رکن دَی:

دَ لوییٔ په مقام به هاله کښینې که دَ وَرکړی دَ مړانی په وزر ځې

دا وه دَ عبدالقادر خان ځنی اجتماعی او اخلاقی افکار چه موږ لنډ ولیکَل، دَ ده په دیوان کښې ډیر اجتماعی او اخلاقی

درسونه سته، چی ویونکيِ به ئې پخبله هم وومی.

## تصوف

عبدالقادر خان دَ تصوف او عرفان په خوا کښ نه یوازی علماً لاس لَرِی، بلکه دَی عملاً هم په دغه پاکه دنیا کی ننوتَلی دَی، یعنی یوازی عالم ندی بلکه سالک هم دَی. دَه په عرفان او تصوف او طریقت کښ د شیخ سعدی لاهوری لاس نیوَی کړی[1] او د حضرت مجدد له کانونه ئې ډیر روحانی او عرفانی فیوض لاس ته راوړی دی چه مورِ به لاندی لنډه اشاره ورته وکړُو:

**دَ جمال ننداره:** عارف دَ عرفان او پیژندگلویَ په مقاماتو کی دومره لوړیږِی چه په پای کی دَ قدرت دَ جمال نندارې شاوخوا په هر څه کی وینی، او دَ هغه ازلی نور بریښ او ځلند توب له هری ذرې څخه ورته راوزی، ځکه نو عرفا ټوله جهان ته دَ مینی په سترګه گوری ولی چه ټوله نړیَ دَ هغه جمال مظهر گڼی، چه دَ هری ذرې زړه ئې په روڼا روڼ دَی، شیخ اوحدی مراغی وائی:

**خلقی نشان دوست طلب میکنند و باز　　　از دوست غافل اند پچندین نشان که هست**

شیخ سعدی دَ شیراز دا عرفانی لویه مسئله داسی بیانَوِی:

**گویند نظر به خوبرویان　　　نهی است نه این نظر کی ماراست**
**در روی تو سر ضع بیچون　　　چون آب در آبگنه پیداست**
**چشم چپ خویشتن برآرم　　　تا دیده نه بیندت بجز راست**

عبدالقادر خان هم دا مسئله چی دَ عرفان هسک مقام دَی، او هر څوک په آسانی نسیِ ور رسیدلای، په داسی سلاست او صراحت وائی چی د ده دَ عرفان لوړ مقام ځنی څرګندیږی:

دلبر مخ راته ښَی په هر آئین کښ　　　گه په تور کښ جلوه گر شی گه په سپین کښ
گر په زلفو کښ ځای وکا زړه را کاږی　　　گه په سترگو په رخسار او په جبین کښ
کله کله په ترسا کښ مخ څرگند کا　　　دَ صغان په دود ئې وران کاندی په دین کښ
په څراغ کی تجلا وکا پتنگ ته　　　بلبلانو ته ښکاره شی په نسرین کښ
نور او نار ئې د جمال جلا اثر دی　　　قهر مهر ئې په تریخ او په شیرین کښ
په هر څه کښ گوره یار عبدالقادره　　　که د نشته شک گمان پخپل یقین کښ

شیخ سعدی شیرازی دا دَ جمال د نندارې مَیَن توب په خورا ښه پیرایه ادا کړی دَی چه ډیر عارفانه دَی او وائی:

**بجهان خرم ازانم که جهان خرم ازوست　　　عاشقم بر همه عالم که همه عالم ازوست**
**بجلاوت بخورم زهر که شاید ساقیست　　　بارادت بکشم درد که درمانم ازوست**

عبدالقادر خان پر دغه لار له بلی خوا راځی، دَی وائی چی حب دَ ذات په انسان کښ له دې جهته فطری دَی، چه دَ ذات خاوند او مالک خو جانان دَی، او مَنَی ئې له دې جهته خوښ دَی، چه پسرلی پسې راتلُونکی دَی:

زه چه هسی پخپل ځان باندی مَیَن یم　　　دَ جانان دَی په جانان باندیِ مَیَن یم
دَ خزان میوه بهار، دَ بهار دَی دَی　　　تر بهاره په خزان باندیِ مَیَن یم

(۱) وگوری دَ دې مقدمې، دَ عبدالقادر خان دَ معاصرینو تفصیل.

په دې ډول دَ عبدالقادر خان تخیل او تمثیل طبیعی دَی، ځکه چه حب ذات دَ انسان په ختہ اخښلَی دَی، او شاعرانه مبالغه نه پکښې ځایږِی اما په تعلیل کښې ئې عبدالقادر خان ابتکار کړَی دَی.

**حیرت:** حیرت دَ عرفان لوړ مقام دَی، هر څومره چې عارف لوړیږِی، حیرت ئې ډیریږِی، ابن فارض مضری له ډیری مینی څخه په حیرت کښې ډوب وُ: (زدنی بفرط الحب فیک تحیراً)

خواجه حافظ د حیرت په مقام کښې له صومعې څخه میکدې ته ولاړ، چې ګُندِی د عرفان یَوَه بله وړانګه ورته وبریښی:

**سر ز حیرت بدر میکدها بر کردم　　　چون شناسای تو در صومعه یک پیر نبود**

مګر دَ حیرت په سیند کی ډوب سو و بس:

**نشوی واقف یک نکته ز اسرار وجود　　　گر تو سر گشته شوی دائرهٔ دوران را**

خوشحال خان ختېک هم دَ حیرت په بیدیا کی ورک دَی، لکه چې وائی:

چه و تورو خاورو هسی حسن ورکا　　　زه حیران پاتو په صنع دَ خالق یم

عبدالقادر خان دغه مسئله په یَوَه بیت کښې په خورا واضح او روښانه ډَول داسی بیانَوِی، چه حیرت دَ معرفت سَره سم دَی، هر څو ئې چه معرفت ډیریږی، هغونی حیرت زیاتیږی:

تحیر په موافق د معرفت دی　　　څو ئې شناخت هومره ئې زیاته حیرانی ده

**راز او اسرار:** دَ عرفان په دنیا کښې ځنی پټ رازونه او اسرار سته، چه عارف ئې له ښکاره کوَلو څخه معذور دَی، هغه څوک چه په څه وپوهیده، بیا ئې ږِغ نه را وَخوت، حافظ وائی:

**مصلحت نیست که از پرده برون افتد راز　　　ورنه در مجلس رندان خبری نیست که نیست**

شیخ شهاب الدین عمر بن محمد سهروردی (٥٣٩-٦٣٢هـ) چه دَ اسلام د لویو عارفانو څخه دَی وایِی: چه څوک د حضرت محبوب مخی ته لار پیدا کړی، بیا نسی را ګرزیدای او نه څه وَیَلای سی، (مارجع من رجع الامن الطریق و ما وصل الیه احدُ فرجع)[١] شیخ سعدی شیراز دا دَ عرفان او تصوف مقام ته داسی راځِی:

**و گر سالکی محرم راز گشت　　　ببندند بروی در باز گشت**

**کس را درین بزم ساغر دهند　　　که داروی بیهوشیش سر دهند**

په دې ډول هغه څوک چه په څه و پوهیده بیا ئې حال را نغَی:

**کانرا که خبر شد خبرش باز نیاید**

عبدالقادر خان چه دَ عرفان دَ مقاماتو یَو پوه سیاح او ګرزاند دَی په یَوه بیت کښې دا ټوله اسرار بیانَوِی او دَ راز دَ دنیا څخه عارفانه وَیَل کَوِی:

نندارچیانو به ئې شرحه دَ مخ وکړه　　　تحیر ورته آواز دَ لا تقل کا

**رشتیا:** دَ عرفان پر لار و صداقت او رشتینی مینی ته عارف تر هر څه ډیر اړ دَی، مَیَن دَ وصال کبَره وَړه او ګرانه لار دَ صدق په وزر طی کَولای شی او صدق معشوق هم عاشق ګرزَوِی:

دَ عشق په کار کښې چه څوک صادق شی　　　دَ یار د مهر هاله لایق شی

دوئی دَ دواړو له منځه ووزی　　　عاشق معشوق شی معشوق عاشق شی

---

(١) عوارف المعارف دَ سهروردی.

## صنایع او بدایع

دَ عبدالقادر خان دَ کلام لمړی مزیت سادگی او سلاست دَی، دَی په هر ځای کښ دغه ښیګړه ساتی، او په لطافت او عذوبت ښه مضمون آفرینی کَوِی، او د شعر او ادب دَصنائعو او بدائعو په ادا کښ هم استاد دَی، یعنی په عین سادگی کښ خپل کلام دَ بلاغت دَ بدایعو په غمیو هم ښکلی کوی، دَ صنعت دَپاره کلام نه مغلق کَوِی، او نه درانه او پیچیده مضامین سَره غونډوی په دې بیتو کښ ئې دَ طباق صنعت څه ښه ادا کړَی دَی:

چی ئې تللم په خندا خندا دیدن ته　　　اوس ئې درومم په ژړا ژړا مزار ته

یا دا:

هر سحر سترګی دَ ګل په اوښیو ډکی　　　پدا باغ کښ بې ژړلو خندا نشته

په دې دوو لاندی بیتونو کښ تجنیس تام دَی.

سل زخمه که وخوری ترې به یَو څاڅکی پرینوزی　　　هسی رنګه وچه دَ صورت کا مینه وینه

خوب به ئې بدل په بیداری خوښی په ویر شی　　　هر چه ئې په زړه کښ دَ دلبرو مینه وینه

په دغه ډَول دَ ده کلام له ډیرو بدائعو ډک دَی، د ۳٦ مخ په دریمه بدله ، او د ٥٦ مخ په آخرینۍ بدله کښ صنعت دَ لزوم مالایلزم او تکرار دَ قافئې راغلی دَی، علاوه پر دې عبدالقادر خان یَوه اوُږده نصیحت نامه دَ تجنیس په صنعت کښ ویلې دَه، چی دَ سر یَو څو بیتونه ئې موږ د دې کتاب په ۱۵۵مخ کښ راوړی دی له دغه ښکاره ده، چی ده دَ بلاغت پر صنائعو پوره اقتدار درلود، او دَ شعر ټوله اقسام لکه غزل، قصیده، مثنوی، مخمس، مربع، رباعی او نور ئې ویلی دِی.

## حس طلب:

په شاعری کښ دَ ویُونکی دَ کمال او دَ شعر دَ پوخوالی یَوَه ښکاره نخښه هم دغه دَه، چه په حسن طلب پوه وی، دَ پاړسو شعر مشهور نقاد سبلی نغمانی دَ خواجه حافظ دَ کلام یَوَه مخصوصه ښیګړه دغه ګڼی.[1]

مثلاً خواجه خپل محبوب په دې انداز ځان ته را غواړی:

**پروانه و شمع و گل و بلبل همه جمع اند　　　ای دوست بیا رحم به تنهائی ما کن**

لسانی شیرازی بیا په دې ډَول محبوب را غواړی:

**بیا که گریه من آنقدر زمین نگذاشت　　　که از فراق تو خاکې بسر توان کردن**

بیدل چه دَ شعر او ادب دَ میدان بریالَی دَی، دَ محبوب په غوښتَنه کښ نوې زمینه ځان ته مومی او داسی مضمون پیدا کَوِی:

**رنگ و بو جمع است در هر جا چمن دارد بهار　　　ما همه پیش تو ایم ای جمله ما با ما بیا**

عبدالقادر خان دَ تخیل په دنیا کښ یَوه دَ عیش او عشرت دنیا تصویر کَوِی، باران اوری، نری نسیم دَ سنبل ښاخلې ښورَوی، دَ عیش او مسرت ټوله عوامل په ګلستان کښ سَره ټولَوِی، وروسته نو محبوب ته په داسی ژبه دَ راتګ بِڼغ کَوِی، چه دَ ادب او د مینی احترام هم پکښې دی، امر نه کَوِی، بلکه خپل دَ اشتیاق او انتظار اندازه مصوره کَوِی، چه دا ډَول حسن طلب نو ډیر مؤثر او مفید، او دَ شاعرۍ کمال دَی:

---

(۱)　شعر العجم ج ٥.

بارانووريږی، څڅواکی څاڅی — نسيم را والوت سنبل پرې ناڅی
اسباب دَ عيش واړه موجود دی — ساقی ته ګورُو چی دَی را پاڅی

## شعر دَ عبدالقادر خان په نظر کښ

ارسطو دَ يونان نوميالی فيلسوف شاعری دَ فطرت محاکات او دَ طبيعت پيښې ګڼی[١] دَ فرانسه مشهور نقاد کوسين ويلیِ دِی، چه د فطرت د محاسنو او ښکلو نخښو دَ ترجمانیٔ او تصوير ذريعه شعر دَی، چه موږ دَ تخيل په قوت بيرته هغه طبيعی محاسن په شاعری سرَه تصوير او مجسم کوو[٢] دَ انګلستان يَوه ډير پياوړی اديب ورډ سوتهٔ په دې لنډه وينا دَ شاعریٔ تعريف ښه کړَی دَی: چه شاعری دَ انسان د فطرت مرقع دَه.[٣]

عربو پر دې فن ښه نوم ايښَی دی، چی دَ شاعريت کلمه ئې ټوله خواوِی په ځان کښ را جمع کَوِی، او پر دغه کلمه دَ شعر ټوله تعريفونه صادق دِی، په نوې اصطلاح چه دَ شاعریٔ لوی ټوک فنی طبيعت Artistic Nature ګڼل شوی دَی، دَ شاعريت کلمه هم پوره پر دغه باندی حاوی دَه، دَ عربو يَو پوَه محقق ابن سلام شعر هغه صنعت او ثقافت بولی، چی سترګی، غوږ، لاس، ژبه او دَ انسان ټوله حسيات او ژور دَ زړه مشاعر ئې زيږَوِی[٤] او دَ علی جرجانی په عقيده ئې نقد ژور فکر، ښه کتنه، او ټينګه پلټَنه، او اَرته پوهَنه غواړی.[٥] له دغو توضيحاتو څخه ښه ښکاره شوه، چی دَ انسان فطرت او دَ زړه منځ، دَ شعر چينه دَه، هغه وَيَل چه دَ زړه څخه را ووزِی، ډير قيمت لَرِی، او هغه شاعری چی احساسات او عواطف ئې محرک وِی، ډير هيجان او درُوند اثر بخښی!

ډير اشعار او دَ صنعت په ګينه ښکلی نظمونه سته، چه د هيجان او تأثر روح هيڅ نلَرِی، او ډير ساده او بې تکلفه ويناوِی دِی، چه دَ سړی زړه ښورَوِی! او اُوښکی ئې بهوِی!...

دا ولی؟ سبب ئې فقط دغه دَی، چه لمړنی له زړه څخه را وتلی، او ويونکی خپل ټپی او په وينو لژند زړه پخپلو خبرو کښ پټ کړَی وِی، مګر اوستری خبری کورټ په تقليد وِی، دَ زړه او عاطفې هيڅ کار نه وِی ور سرَه.

دَ شيراز شيخ سعدی دا مسئله ښه روښانه کَوِی، هغه وخت چه وائی:

**هر دل که پريشان شود از نالهٔ بلبل — در دامنش آويز که با وی اثری هست**

عبدالقادر خان چه په زړه خوږمن يَو سړی دَی، دَ ده شاعری هم دَ زړه ږغ او دَ عواطفو او احساس ترجمانی دَه، په دې يَوَه بيت کښ دَی دَ خپلی شاعریٔ تصوير په څه دردناک او مؤثر ډَول کَوِی:

رنګينه شعر می مه ګڼه خبری! — دا روان ځما دَ زړه دَ وينو رود دی

نو عبدالقادر خان چه شعر وايی، له زړه څخه ئې وايی، که ليک کَوِی، دَ زړه په وينو ئې کَوِی، دَی پخپل کلام احساس او عاطفه او دَ زړه درد ننَباسِی، او هغه فکر او ذوق پکښ پټوِی، چه دَ زړه په وينو اخښلی شوی وِی!

ځکه نو موږ ده ته يَو حساس او عاطفه لرُونکَی شاعر وَيلای سو، نه تش مقلد او پيښه ګر!

---

(١) وګوری د ارسطو شعريات.
(٢) دَ ډوکټور محی الدين روح تنقيد.
(٣) روح تنقيد.
(٤) طبقات الشعرا، دَ ابن سلام.
(٥) دَ علی بن عبدالعزيز جرجانی الوساطه ص ١٦٢.

## دَ عبدالقادر خان آثار او تألیفونه

عبدالقادر خان لکه خپل نومیالَی او توریالی پلار دَ پښتو ژبی لوی مؤلف او لیکونکَی او نامتو ادیب او شاعر دَی، دَی علاوه پر نظم په نثر کښ هم پیاوړی او غښتلی لاس لَرِی، دلته به موږ لنډ دَ ده آثار او تالیفونه وَښیؤ:

**۱. د اَشعارو دیوان**

دغه دیوان چی اوس تاسی ته وړاندی کیږی، دَ ده دَ غزلیاتو او نورو اشعارو مجموعه دَه، چه تقریباً درې نیم زره بیتونه ته رسیږی، او دَ عشقی، عرفانی، اخلاقی، اجتماعی ویناؤ څخه ډک دَی، غزلیات او رباعیات ئې مردف دی دَ پای ټوک متفرقات دی.

**۲. گلدسته**

په دغه نامه عبدالقادر خان دَ شیخ سعدی شیرازی گلستان کټ مټ په پښتو ترجمه کړَی دَی، په دې کتاب کښ دَه دَ خپلی قریحې قوت او جلا ښه ښکاره کړې او په خورا ادبی قدرت ئې ترجمه کړَی دَی، لکه دَ حضرت سعدی گلستان چی په پاړسو کی فصیح او بلیغ دَی، دغسی هم د عبدالقادر خان پښتو ترجمه په هغه ډَول ادبی مزایا لَرِی، ټوله منظومې ئې په نظم او په خوږه ژبه ترجمه کړِی دِی! دَ دې کتاب یَوه برخه مسټر راورټی Raverty انگلیس په گلشن روه کی چاپ کړې ده.[۱]

**۳. نصیحت نامه په تجنیس**

دا نصیحت نامه یَو خوږ او سلیس مثنوی دَی، چی ټوله دَ تجنیس په صنعت وَیَل شوی او عبدالقادر خپله استادی او دَ شعر کمال پکښ ښکاره کړَی دَی، افسوس چه د دې کتاب فقط دَ سر یَو څو بیتونه موږ ته را رسیدلی دِی، چی د دې کتاب په ۱۵۵ مخ به ئې وگورَی نور کتب ورک دَی.

**٤. څلویښت حدیث**

دا یَو کوچنی کتاب دَی، تر ۵۰۰ بیته پوری رسیږی، ورُوسته تر حمد او ثنا د حضرت رسول ﷺ څلویښت صحیح حدیثونه ئې په پښتو مثنوی ترجمه کړِی دِی دا کتاب ما لیدلَی دَی، دا څو بیتونه ئې دَ نمونې په ډَول لیکَم:

| | |
|---|---|
| ځکه ما څلویښت حدیثه په پښتو ژبه بیان کړه | پخپل ځان می گرانی کښیښود پښتنو ته می آسان کړه |
| هوښیارانو دِی ویَلی هر چه دوې خبری ضم کا | هغه شخص به یَو څاڅکی دَ ځگر دَ وینو کم کا |
| مؤمنانو ته بایده دی چه دا حدیث په یاد کا | گنهگار عبدالقادر دِ په اخلاص په دعا یاد کا |

**۵. ادم خان او درخانی**

دَ پښتو په ملی داستانو کښ دا قصه خورا شهرت لَرِی، د دې ملی قصې پهلوانان دواړه یوسف زی دِی. آدم خان دَ حسن خان زوی، او درخو (درخانیٓ) دَ طاؤس خان لور وه، دوی دَ مغولی اکبر پاچا په عصر کی (۹٦۳-۱۰۱٤هـ) ژوندی وه[۲] دا دواړه مَیَن خورا سوزناکه قصه لَرِی، حماسی، عشقی نارې پکښې دِی، دَ خوښی او ویر جذبات یعنی دَ کومیډی comedy او تراژدی tragedy مخصوص ځایونه او مواقع لَرِی، دا قصه عبدالقادر خان لیکلې دَه، مگر ما ته نده معلومه چی نثر وه که نظم، ځنی نیم منظوم مثالُونه له دغی قصې څخه مسټر راورټی دَ خپل پښتو گرامر په مثالو کښ را نقل کړِی دِی.[۳]

دغسی هم مؤرخ الفنستن پخپل کتاب دَ کابل شجره An Account of Kabul کښ د دغی قصې ذکر کړَی دَی، مگر

---

(۱) طبع هدَ هرټفرډ ۱۸٦۰ ع.

(۲) دَ پښتو دَ شعر تاریخچه وگورَی په طلوع افغان کښ.

(۳) طبع د کلکتې ۱۸٥٦ ع.

افسوس چې دا کتاب هم ورک دَی.

**٦. یوسف او زلیخا**

دَ یوسف او زلیخا قصه هم عبدالقادر خان تقریباً په څلور زره بیته په پښتو نظم کړې ده، په دې کتاب کې دَ ده ژبه خورا خوږه دَه او دَ کلام اعجاز ئې ښه ښکاره کړَی دَی، دغه کتاب دَ پښتو ادب له لمړیو او ښو آثارو څخه گڼل کیږِی، د دې کتاب په سر کې داسی وایی:

دا قصه اول تازی وه — په تازی ئې آغازی وه
په فارسی کړه فارسیانو — نظم، نثر، سخندانو
ما هم بیله تر حصه کړه — په پښتو می دا قصه کړه
هر پښتون چه پر ناظر شی — په لوستو ئې خوږ خاطر شیء
له معنا ئې خاطر ښاد که — موږ دِ هم په دعا یاد که
په خفیف بحر ویلی — کل وقت ځنی وتلی
لکه بحر صفا صاف دی — هر گوهر پکښ شفاف دی
چه خفیف بحر شیرین که — هغه کس سحر مبین که
ما شیرین بحر خفیف کړ — بې ځوابه می حریف کړ

دا کتاب ده په ۱۱۱۲هـ کښ پای ته رسولَی دَی لکه چې وایی:

سن دَ هجر غین و قاف وُ — اته کم دَ پاسه کاف وُ
چې تمام شو دا کتاب — په پښتو شو انتخاب

مسټر راورټی انگلیس په گلشن روه کښ دَ دغه کتاب یَوه برخه هم چاپ کړې ده د دغه کتاب قلمی مصوری او مطلا خوشخطی نسخې کله کله لیدلِی کیږِی، او بیل هم چاپ شوَی دَی.

علاوه پر دغه کتابونو عبدالقادر خان نور پښتو قیمتی آثار هم لیکلِی دِی، چه اوس متأسفانه ورک دی، مسټر راورټی دَ "انتخاب شعر پښتو" په کتاب کې وایی، چه ده ٦۰ جلده کتابونه تألیف کړی دِی، مگر اوس موږ ته تر دغو ٦ زیات ندی معلوم، گنُدی وروستنۍ پلټنی او تحقیقات دغه ورکی مرغلَری او قیمتی غمی ومومی، او دَ پښتو ژبی دا گرانبها آثار له ورکتوبه وساتل شِی.

## خاتمه

اوس موږ دَ دې مرحوم ادیب دغومره پیژندَنه ستاسی سَره وکړه، او دَ ده دَ شعر دیوان مو هم در وړاندِی کَی، هیله سته، چه دَ پښتنو نور تحقیقات او پلَټنی به دَ ده له سوانحو او ادبی خدمتونو څخه دَ پټی پیڅوَل واخلِی، او پښتانه به دغه نومیالی ادیب تر دغه لا ښه معرفی کړی، زموږ خو دغومره دَلاسه کیده چی و مو کړه.

## استدراک

دَ عبدالقادر خان په سوانحو کښ دَ کابل لیدَنه او سفر هم سته، له دې رباعی څخه ښکاره کیږِی، چه کابل ئې هم لیدلَی دَی:

له خپله بخته وَ چا ته زار کړو　　　دَ څرخ ناسازی وَ چا ته شمار کړو
ډک دَی دَ کښلیو دَ کابل ښهر　　　هومره څه نشته چه یَو ترې یار کړو

(قندهار، نوَی ښار ۳ دَ زمری ۱۳۱۷)
عبدالحی حبیبی

بِسمِ اللّٰهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيم



## (الف)

ساقي پاڅه پياله راکړه پاښې بيد کا
دَ بهار دَ راتلو باغ وته نويد کا

ستا په ميو کښ نشا دَ يکرنګئ دَه
چه تر فهم مي يکرنګ سيه سفيد کا

دَ رقيب خاطر به ولی لکه يخ شِي
که يار مخ راته ښکاره لکه خورشيد کا

سياه چشمانو څخه بوی دَ وفا نشته
له دې بابه به څوک څه ورته اميد کا

چه په عشق سره ژوندی وی هغه نه مری
خدای توانيږی که ځما عمر جاويد کا

زړه ئې درست له ما نه يووړ لا ئې ګوره
چه لا څو سحر دمؤنه مکر و شيد کا

دا ځل ډير ور ځنی ښاد عبدالقادر شو[1]
چه به بيا په ښايسته ؤ اعتميد کا

دا خويونه که دانا سړی اختيار کا
په دنيا په دين به جوړ پرې کاروبار کا

عبادت دَ حق په صدق په اخلاص کا
تل له خپله نفسه جنګ کوی کار زار کا

په فقراؤ سخاوت کا بې منته
په حاجت کښ استغنا له دنيا دار کا

د دوستانو تل پند نصيحت وايي
له دښمن سره په حلم زيست روزګار کا

له تمامو خلقو زيست په انصاف کاندی
په رشتيا ويل حاصل خپل اعتبار کا

شفقت مهربانی کا په کوچنيو
دَ لويانو په خدمت حاصل وقار کا

جاهلانو سره زيست په خاموشی کا
که هر څو په بد ويَل ئې زړه آزار کا

هميشه عبدالقادر غُندی آزار وړی
چه نه څوک آزاروی نه له چا زار کا

چه ئې ستا خوړې خبری زړه صاف نکا
دَ طهور شراب هغو وته لاف نکا

خدای پخپله ستا صفت دی بيان کړی
نشته شی چه مدح ستا دَ اوصاف نکا

چه ئې ستا په شريعت قدم ثابت کړ
له صراطه دِ هغه سړی خاف نکا

چه خلاف دِ له سنت کا ځای ئې اور دَی
که له فرض او له واجبو خلاف نکا

خدای به خپل ګنه ګار عفو ستا په روی کا
ولی ستا ګنه ګاران به معاف نکا

په طواف ئې مفتخر عبدالقادر کړه!
خوار شی څوک چه تر روضه ئې طواف نکا

[1]. دا ځل ډير عبدالقادر ځنی سودمن شو.

څوک چه مینه په دنیا لا په عقبا کا — نیوهیږی سراسر واړه خطا کا
که دَ وصل له لذته ئې خبر شی — دَ بهښت و نعمتونو ته به شا کا
دَ زاهد هِله[۱] دَ حور او دَ قصور ده — عاشقان ئې و دیدن ته تمنا کا
چه اعلی وی په اعلی به ئې نظر وی — چه دانا وی همګی چاری ادنا کا
دَ خزان دوک ئې لیدلی دی په سترګو — چه بلبله په ګلزار راشی غوغا کا
چه ئې شا په شا په کټ کښ ناستې[۲] نشِی — دا فلک ئې په هِواد ځله[۳] جدا کا
چه سبا به له مجلسه جدا کیږی — شمع ځکه درسته شپه دَ سوز ژړا کا
چه دَ وصل په دولت دی سَره جمع — زمانه به ئې جدا به واویلا کا

هر چه یار کا، هم هغه دَ ده غلیم شی
څه به نور عبدالقادر یاری له چا کا

خدای به ژر پریشان یاران سره یَو ځای کا — بد خواهان به سر وَهی هم به های های کا
پچهان کښ نوی نوی بازیَ کیږِی — لا یَوه تمامه نه بله برپای کا
دَ بهار د ګلو ګښت کوَلَی نه شم — خپلی اوښی راته مځکه ګل ولای[٤] کا
تَل به وار د رقیب جوړ را باندِی نه وِی — ځموږ وار به هم پرې ساز شی که ئې خدای کا
دا دنیا راته ښکاره قمار خانه شوه — هر څو ډیر که وګټی آخر ئې بای کا
بزرګی په وزر نده په ښه خوی دَه — بوم به کله په وزرُو ځان همای کا

زخمی شوی دی هر لور عبدالقادره
څوک اوُه اوُه، ځنی آه آه، ځنی وای وای کا

که هر څو وربادنی غاو رقیب غماز کا — عاشق کله غوږ دَ دیو په آواز کا
په جهان کښ چه بدخوی او ګنده بوی وی — زمانه ئې ململ پوشه لکه پیاز کا
ناز ته مخ بویه نازک لطیف تر ګله — هر مخ کله هونبره مخ لری چی ناز کا
هر چه نه نیسی نظر له کښلیه مخ — بویه دا چه ځان غمونو وته ساز کا
باد را والوت مخالف نا خدای بیهوښ شو — ګوره سر به په کوم لوری دا جهاز کا
چه ئې نه د میو سود نه ئې دَ سیوری — دا فلک ئې لکه سرو سرفراز کا

له بې نیازه بې نیازی عبدالقادره
همیش غواړه چی له غیرو دِ بې نیاز کا

---

۱. ځله.

۲. نماستی.

۳. ځبله.

٤. ګل لا لای.

هر گور ډېره نادانی بورا بلل کا — چه خزان ور پسې شته مینه په گل کا
دا ځراغ به بَل ترکومه وی په باد کښ — یَوه ورځ به ئې صرصر دَ فنا گل کا
په سبا ئې په زشتی بدل ښایست شی — شب ځراغ چه په شپه هونبره تجمل کا
خفی شرک لکه جلی ورته ښکارېږي[1] — عارفان کله نظر په جز په کل کا
په شبنم سره دَ گل غوټی غوړېږی — دَ بخیل غوټه لا سخته نم دَمل کا
نندارچیانو به ئې شرحه دَ مخ وکړه — تحیر ورته آواز دَ لاتقل کا
ستا قلم عبدالقادره مشک افشان شو
چه ډېر ډېر صفت دَ زلفو د کاکل کا

په خزان کښ که نظر په گلو وه کا — ښایسته به پخپل حسن زړه ښه نه کا
دَ جهان وُرکول کل په عاریت دی — عاقلان به تعلق پرې پوری څه کا
دَ فلک آسیا په رود ځما دَ سترگو — چه دَ یار په فراق دروِمی گرزیده کا
یو ساعت ئې خوشحالی اندوه وی عمر — آشنائی دې هیڅوک نکاندی که ښه کا
چه په اصل بوټی تریخ وی خوږ به نه شی — دَ اوبو په ځای که توی شهد اوره کا
پل ئې ځکه په جهان کښ مونده نشی — عاشق تله دَ یار په لورې په لیمه کا
بوی دَ مشکو دَ عنبر په جهان خور[2] شی — مشاطه ئې چه خواره دَ سر ویښته کا
له غمونو ځکه خلاص عبدالقادر شو
چه پخپله بخره خوښ شو حرص نه کا

که دَ خوږو په دعا فرشتې آمین کا — ژر به جمع پریشان رب العالمین کا
دَ وصال په دولت ناستَ غافل مشه — جدائی و واصلانو ته کمین کا
ترق به وچوی له غمونو که نومید شی — دَ ښادیو په امید ښادی غمگین کا
دَ خندا طالب دِ تل په ورېځ ورېځ ژاړی — چه وژاړی خندا هاله یاسمین کا
دَ قصاب له چاړې خوف دَ لاغر نشته — په رمه کښ تل پوښتَنه دَ سمین کا
قوت خو هونبره چه قوت ځنی حاصل شی — که په ټوک ئې دَ اوربشو که غنمین کا
جهان څه چه اسمانوُنه به گډ وَډ شی — که دَ تللیو حال ښکاره ورته زمین کا
دَ خوږ زړه دارُو په دا عبدالقادر کا
چه د خوږو په دعا فریښتې آمین کا

---

۱. ور ځرگندیږی.

۲. خپور.

عشق دَ کل بلاؤ سر دَی خدای دِ ځوک پر اخته نکا
همگی دَ غم لښکر دَی خدای دِ ځوک پر اخته نکا

له وطنه سړی ورک کا و عالم وته ئې سپک کا
دا همه دَ ده اثر دی خدای دِ ځوک پر اخته نکا

پایمال مال و منال کا بد ئې رنگ بد ئې احوال کا
خوار کا تا که دِ توانگر دی خدای دِ ځوک پر اخته نکا

نه ترې مرِی نه ترې رغیږِي که دارُو کا لا خوږیږِی
تر ناسور ئې رنځ بتر دی خدای دِ ځوک پر اخته نکا

هم تیره دَی هم تاریک دی تر ویښته نه لا باریک دی
گویا جسر دَ سقر دی خدای دِ ځوک پر اخته نکا

سوزنده لکه آتش دَی تر آتشه لا سرکش دی
په ظاهر که منور دی خدای دِ ځوک پر اخته نکا

چه عاشق عبدالقادر شو حال ئې کل ورته ظاهر شو
دا وَیل کا ترې خبر دی خدای دِ ځوک پر اخته نکا

هر عالم چه تن پرست شی کامرانی کا
دَی به څه رنگه دَ دین نگهبانی کا؟

چه له خدایه ویره کا عالم هغه وِی
که دَ تخت دَ پاسه ناست وی سلطانی کا

موافق چه ئې عمل له علمه نه وِی
تر جاهل به عالم زیاته پښیمانی کا

دَ عالِم فساد فساد دَ درست عالم وی
شیطان کله هونبره ډیره ویرانی کا

دَ هغه عالم صحبت لکه دارُو دَی
چه پیدا درکښ خویؤنه انسانی کا

اول علم بیا عمل دریم اخلاص دی
دا درې خویه مرد عالم ربانی کا

چه بې علمه شیخی کا مریدان نیسی
پیر مرید کارونه واړه شیطانی کا

نمونځ روژه به ئې په ځان باندی تاوان شی
چه په حکم ئې دَ نفس نفسانی کا

بل ته وائی دنیا پریږده بې وفا دَه
دَی ئې سعی شپه او ورځ په ودانی کا

نصیحت کا چه عیبت تر زنا سخت دی
په وَیل دَ غیبتونو ځان رانی کا

په عمل دَ گیلان سپی ور ځنی ښه وِی
په خوله ځان عبدالقادر گیلانی کا

دلربا که را ښکاره کښلَی جمال کا
له خاطره مینه[1] محو غیر خیال کا

کفایت په عاشقی کښ نه ځائیږی
محبت بنده زاده دَ پاچا سیال کا

دَ وصال په وخت خبره لوی حجاب شی
عشق عاشق گهی گویا گهی ئې لال کا

په بورجل ئې دَ کال غم را باندِی تیر شو
انتظار یوه گړی په سړی کال کا

که ظاهر له نوره خلقه مشغولا کړم
زړه مې تَل دَ یار له غمه اشتغال کا

سپین ویښته دَ بدنامئ به وسمه تور کا
چه آواز دَ صفا رؤیو دَ وصال کا

زه او یار په صورت دوه په معنی یَو یؤ
ځوک چی دَی خوشحالَوِی ما به خوشحال کا

مځکه تخت آسمان ئې تاج ستوری گوهر شِی
چه په سر ئې دا دَ مینی همای بال کا

دَ دوران له انقلابه لا بقا شِی
اعتماد به دانا څه پدا اقبال کا

---

۱. می به محو.

دَ گور مړَه به په ژړا په نارو گډ شِي
که ښکاره عبدالقادر ورته احوال کا

نشته په جهان کښې څوک پدا قد و بالا — څه عجب صورت دَی تبارک و تعالیٰ
هیڅ سودا ونشوه ځنی تش لاسُونه ولاړم — ویر دَی[1] پدا ښهر کښې لایق دَ خرید لا[2]
کله به خپل یارو ته بلی و نعم وکړی — که تل به ئې جواب کو پسوال کښې لم یالا
هر چه دا سوال کا چه به کړم په کښلیو مینه — بویه چه یَو ځل دَ ناموس مینه کا تالا
ډیر په شیوه درومې خدای دِ ژغوره له نظره — زیات تر نورُو کښلیو خیال دماغ دی دَ تالا
واړه ښایسته که لکه گل دَ یوه باغ دی — لا ځما دلبره پکښې شان لری والا
دا څه ویَل ندِی چه عبدالقادر ئې وائی
پیَیلی ئې دَ نظم په تار دی لؤلؤ لا لا

چه دنیا ورته ښکاره شوه بې وفا — و دنیا ته به مخ نکا بې قفا
په اصحابو به پریوانه وه بې حده — په کفارُو به وه زوز[3] که ښه وَی دا
چه ئې مخ وِی دَ دنیا و تولُول ته — خپل پردِی ور ځنی تل وی شاپشا
دښمنی ئې دَه بهتره تر یاریَ — په یاری کښې یار خراب کا تر یوحا[4]
دواړه لاس ئې دَ خپل یار په وینُو سره وی — نادانانوُ ته ښکاریږِی په حنا
که له چا سره یاری کاندِی تر سَره — لغه پسه باندی ته هم شه شیدا
دَ سلیمان تخت چې په باد ته آخر باد شو — په قارون په ژوندوُن وشوه تماشا
په سکندر او په دارا ئې وکړې چاری — په شداد او په نمرود ئې وکړې لا
دَ هغه چه طمع نه وه چه به خوار شو — په دنیا کښې هسی مست وُ بې پروا
په ژوندوُن ئې خواروزار حیران پریشان شول — امته دار دی د تکړ[5] سبا بیگا
چه له کبره ئې سَم نه ویَل و چا ته — اوس کړې خبری اَروی له هر چا
چه وینښتو ئې تاب ورکړَی و سنبل ته — دَ سنبلو په دود ځای ئې شو صحرا
چه به خواپخوا پراته وه له مهرویو — اوس پراته له تورو خاورو خوا په خوا
حال ئې درست عبدالقادر وته ښکاره شو
ځکه هسی ندامت کا له دنیا

---

١. ډیر دی.
٢. کالا.
٣. په یوه نسخه کښې زوړ او په بله کښې زوژ راغلی دَی، غالباً به ځوز وی.
٤. نمر، آفتاب.
٥. په یوه نسخه کښې تکړ په بله کی بکړ دَی.

چه پخپله خوله بیان دَ خپل هنر کا | د خپیسۀ په دود هر کوره بد چر کا[۱]
خپل گوهر لکه صدف ساتلَی بویه | زمانه که ئې پاره پاره ځگر کا
امتحان دَ مرد نامرد په حادثه شِي | اور نیکی بدی ظاهره دَ اکر کا
عاقبت به وینی وژاړی چه خاندِی | دَ ښیبښې قلقل ښادمنو ته خبر کا
دون همت لکه خس بیا پریوزی په مځکه | که گردباد ئې دَ دولت په فلک بر کا
چه فنا خپله هستی کا په سرَه اور کښ | شمع هاله نور له نوره منور کا
چه منت ور سره مل وی تر دامن دی | که به شونډِی دَ حیات په اوُبو تر کا
دَ بوریا نخښی په تن دَ مسکینانوُ | لا ښایست تر منقش جامو دَ زر کا
په دې بزم کښ چه مَی دَ مراد وچښی | په آخر د ناکامیَ پیاله ورکا
دَ دنیا خوښیَ که واړه ورته کښیږدَی | دروغجن دی که پر غم دَ اشنا ورکا
چه پوخت دَ تلو راتلو کا چیغارُونه | دَ هِواد یاران را یاد زانِی اکثر کا
دَ غم جنو په کوځه مه ځه خوشحاله! | صاف ساعت به دِ دَ عیش مکدر کا

ته لا هسی باد پیمې عبدالقادره
دم پدم دِ عمر باد غندی گذر کا

طول امل چه پدنیا عیش و انند کا | پدا هاړ کښ دَ اورو په طمع پند[۲] کا
لږ راحت به ئې په ډیر محنت بدل شِي | چه مرگ مخ ورته دَ نمر په دود ځرگند کا
کبرجن چه قهقه خاندِی پشا درومی | پمعنی کښ پخپل ځان پوری ریشخند کا
څو دَ عشق په تیغ واژه شم غریزیږم | قیمت زیات واخلی گنی چه ئې بند بند کا
نیکخواهان دَ پند وَیلو صرفه نکا | نیک بختان بویه چه غوږ دَ دوی په پند کا
رخصت مه اخله په غلا را ځنی درومه | کله څوک دَ ځان وژلو کار پسند کا

چه مې ولیده بشر ستا | کمترین غلام شو نمر ستا
گل له شرمه خولې پریږدی | چه په مخ شِي برابر ستا
دَ بادشاه په بادشاهیَ | خندا کاندِی قلندر ستا
گل، شبنم، سبا، بلبلی | ثنا وائې هر سحر ستا
تر عنبرو په ما ښې دِی | دَ پله خاوری سمنبر ستا
خود له خوده ښایسته یې | حاجت نشته دَ زیور ستا
دَ هر شی تسبیح به اروې | که غوږُونه نه دِی کر ستا

---

۱. هر گوره ښه ځرگا.

۲. دا بدل په یوه دیوان کښ نسته، په بل کښ مقطع نلَری، دَ لمړی بیت دوهمه مسریَ ئې هم ښه نه لگیږی، مگر دَ پند پر ځای که خوند سې دَ دوهم بیته سرَه سَمیږی.

یار په هر لوری جلوه کا　　　　خو بینا نه دِی بصر ستا
تل دا خواست عبدالقادر کا
چه که خاوری شِی دَ وَر ستا

کنبلَی مخ ئې میاشت خجله کړه نمر هم لا　　　　قد ئې سرو کړه سرکوزه عرعر هم لا
سرو لبانوُ ئې قیمت دَ لعلو کم کړ　　　　سپینو غاښو ئې بې آب کړ گوهر هم لا
چه تنها ئې همیشه په سر آخلم　　　　دَ عشق بار می گردن خم کړ کمر هم لا
نه یوائی پصورت جدائی خوار کړم　　　　پدا اور دننه سوځی ځگر هم لا
چه نگهت دَ یار دَ زلفو نسیم راوړ　　　　مشک خوشبوی په هغه بوی شول عنبر هم لا
په لمانځه کښ دَ یار ورَځی را په یاد شوې　　　　دَ زړه آه می محراب وسو منبر هم لا
څو دِ زړه عبدالقادر سرَه جفا کړه
ستا جفا به وړی په سر په بصر هم لا

که گذر دَ یار په چم وکړې صبا　　　　وَوایه ځمور پیغام په دلربا
څو قطرې ځمور په یاد په مځکه توی کړه　　　　چه په بزم دَ عشرت اخلې صهبا
ستا دَ زلفو بوی نسیم په چمن راوړ　　　　له مستیٔ شو دَ غنچو قمیص قبا
په ژړا می دَ بڼو خارُونه توی شول　　　　په لیمه می قدم ږده بې محابا
لکه گل په بوی تر نورُو گلو ښه شِی　　　　ښه خصلت زیاتَوِی حسن دَ خوبا
نصیحت په عاشقانوُ اثر نکا　　　　نه دَ پیر نه دَ استاد نه دَ بابا
تل تر تلو به ژوندی وی لکه خضر　　　　که پخوله ورکا دلبره لام و با
چه ئې یار له غیرِه ځی دَ مرگ ساعت وِی　　　　دریغه مه وَی دَ وصال دَ شپې سبا
تر سایه ئې دَ جنت خوښیِ مومی　　　　دَ خپل یار قامت و ما ته شو طوبیٰ
لدې ملکه په عزت واته بهتر دی　　　　ساکنان ئې حرمت نکا دَ غربا
که رشتینَی حب لرې عبدالقادره
بې ریباره به در دروِمی محبوبا

## (ب)

دا د عامی مستجا به کړې مجیبَ　　　　چه وصال می بیا روزی شِی له حبیبَ
ستا له فکره خالی نه یم خالی مشم　　　　اې تر فکر ځما زړه وته قریبَ
دَ عشق بار دَ لیونتوب په زور اخیست شی　　　　په قوت دَ عقل ور نشی لبیبَ

لاس پلاس مراد و نورُو وته ورکا چه په ما باندِی وار راشی وایی شیبَ[۱]
هم تر ما پوری سرکوزی هم یار رد کړې مخ دِ تور په دواړه لوری شه رقیبَ
ستا پقدر نا آشنا کله پوهیږی دَ حرمت امید لچا کوې غریبَ!
په قسمت ئې دَ پتنگ دَ اور لمبې کړې ته ورځه په گلو گرزه عندلیبَ
بې نصیبه به دِ هیڅ په لاس کښېنوزی بیهوده څه له حرص کړې بې نصیبَ
چه په سترگو ئې پردې دَ حسد پریوزی امتیاز دَ یوسف نکاندی له ذیبَ
چه ئې کانده و هر چا ته بد ښکاریږی دَ ځوانئ کارونه نه ښائی له شیبَ
له بدذات سرَه یاری عبدالقادره
په معنی کښې دښمنی دَه له نجیبَ

بیا په مخ ونیو دلربای نقاب افتح یا مفتح الابواب
گل شگفته شو په هر لور دَ بهار الصبوح الصبوح یا احباب
ریز ساقی می باقی در جام را، ببانگ رف و نی و چنگ و رباب
چه تا قدم په خاورُو کښېښنو فلک قال یا لیت رب کنت تراب
چه جدا شوَی مَین راشی، بکن سببې یا مسبب الاسباب
اور می قبول دَی جدائی دِ نه وِی هجر محبوب رأس کل عذاب
ذل من طمع، عز من قنع ځکه قانع شده اولواالالباب
بې خدایه ویره شرک خفی است و هوالقاهر و هو الوهاب
ربه عمل می دَی هم دَ بدئ تُب عليَّ فانک التواب
ته، رحیمی و کریمی و غفور زه که هر څو نه ځم به راه صواب
عبدالقادر چه دا غزل کړ بیان
څوک بې کاندِی په پښتو کښې ځواب

که هر څو په ورځ و شپه کاندِی طلب ور به نشِی تر مطلوبه بې ادب
تر بې سینَ په قرآن که نظر وکړې دَ ادب صفت دَی کړَی پکښې رب
ادب څه دَی نیک و بد گڼل له خدایه مستقیم په شریعت په روز و شب
سببُونه حجابونه شول دَ وړاندِی مسبب نشِی لیده پدا سبب
چه له شنې ونی نه سرې لمبې پیدا کا که له سرو لمبو بهار کا څه عجب؟
دواړه لب به ئې هغه عاشقان کښېښُل که چه له یاره سر و مال نلَرِی لب
ساقی څه خو طربناکی اُوبه راکړه لوټ غمونو کړ ځما دَ زړه طرب
چه اثر دَ بې خودئ ترې پیدا کیږی تل برجنه اوسه ونه دَ عنب

۱. شِ به یعنی خواهد شد.

له خوږو می دواړه شونډې سبا نښتی چه می وزبیښل په خوب کښ دَ یار لب
زړه پیاله عبدالقادره وینی می کړه
دَ اشنا په یاد ئې نوشه لبالب

که خبر شې دَ رندانو له مشربَ نور به تیر شې تر څلور واړه مذهبَ
څوک دِ طمع دَ ادب لمانه نکا څه غرض دَ لیونیُو له ادبَ
دا همه سبب څما دَ بدبختئ دَی چه دا هسی آزرده شې بې سببَ
چه ترخه وَیَل دِ هونبره ډیر خواږه دی دَ خوږو به دِ څه خوند وِی شکر لبَ؟
په هجران کښ ناقرار په وصال سوځی دَ عاشق دِ څه نصیب کړ څما ربَ
چه لقب ئې دَ سړی را باندِی کښیښنو زیارت گاه شوم دَ فرښتو له دې لقبَ
دَ نمر وصل مونده ستا په دلالت شِی لا به کله طلوُع کرې څما کوکبَ
ژرنده هاله څه حاصل کاندِی چه گرزِی یَو زمان قراری مکړه له طلبَ
یو ساعت دَ آشنا غم عبدالقادره
بهتر دَی دَ تمام عمر تر طربَ

حاصل کړه مقصدوُنه دَ دنیا له هَره بابَ آخر به په ارمان ورځنی ځې سینه کبابَ
دا خرابه هیڅ امیر وزیر ودانه نکړه سعی دَ هغې ودانئ کړه خانه خرابَ
دَ ډیروُ ترږوُ وَچاودې زهرې په ډیر طلب کښ تنده ما ته نشوه دَ هیچا لدې شرابَ
دَ سر ویښته دِ سپین شو، سپین دِ نشو د زړه توری نمر په تندی راغَی ته لا ویښ نه ئې له خوابَ
کاڼی دِی نه زړوُنه چه نرمی ور څخه نه وِی گیتئ[1] دِی نه سترگی چه بې نمه وِی بې آبَ
حرام دِی که حلال دِی خو دِ بویه چه اموال دی هیڅ ویره دِ نشِی له عذابه له حسابَ
مست دَ دنیا کله بې اجله هوښیاریږی مستی دَ دنیا بده دَه تر بنگ و تر شرابَ
خاوری خپل وجود کړه څو لا نه بې خاوری شَوی زده کړه که دِ نه زده دا خصلت له بوترابَ
پروت عبدالقادر دَی دَ غفلت په توره شپه کښ
کله به را خیژې دَ توفیق کښلې آفتابَ؟

درسته شپه ژړا فریاد سترگی بی خوبَ واړه دا کاروُنه ستا دِی میَن توبَ
چه می نَو له سترگو نه ځِی زړه می چَوِی مکړه خدای دَ زخمی زخم بې زهوبَ
ډک خمونه تشَوم دَ عشق دَ میو لا تشنه سینه می هیڅ نده خړوبَ
و منصور ته دَ دار سر بورجل دَ یار شو عاشقان دِ نکا ډار دَ عشق له چوبَ
چه دَ عشق له اوره تبنتی عاشق ندَی دَ خپل ځان په سولو سی دَ پتنگ سوبَ

---

[1] . د دې کلمې تلفظ دَ قندهار په خوا کښ گاتِی دَه، یعنی کوچنئ ډبره، جغله.

ناز پرور دِ خبر دار له قدره ندَی خو هم ما لَره راځه دَ عشق آشوبَ
چه له درده ځان ساتی دوا ته ځغلِی
له هغو عبدالقادره توبَ توبَ

## (ت)

هیڅ له کبره نظر نکا ندِی وخوار تَ ښایسته په معنی زر، درومی زردار تَ
خوش روئي له خوشخوئۍ سره زیب کا وَوایه هغه دلبر دل آزار تَ
خط دَ خپلی پیشانۍ پکښ ولولم چه نظر وکړم دَ کښلیو و عذار تَ
په امید ئې دَ وصال لکه خلیل ځم په خندا په خوشحالی په هوس نار تَ
ما په خوب کښ میاشت لیده په گریوانه کښ معبر وې یار به در يَشی کنار تَ
چه په نشت دَ دنیا خوښ په شته دلگیر وی دَ هغه فقیری ښائی اعتبار تَ
دا څو ورځی غنیمعت دَ گل دیدن دی ولی نه راځی بلبل و نو بهار تَ
چه ئې تلَلم په خندا خندا دیدن ته اوس ئې درومم په ژړا ژړا مزار تَ
لک او کروړ که پسې خرڅ عبدالقادر کا
هم تیر عمر به را نه شی په بیارتَ

په يَوه نظر چه وکړی ساقی ماتَ هغه دم می صد ساله توبه شی ماتَ
دَ فراق لمبو می[1] ننه لړمؤن وسو آرزوئی می شی هر گوره ستا ومأتَ
عاشقی می مادرزاد خوی و خصلت دی دا خصلت می خدای ورک مکړه تر مماتَ
روح په مثل دَ آدم قالب حوا دَی فر رندان ئې شول څوک پلار ته څوک ماما[2]تَ
چه عیسیٰ دَ تعلق له بارَ خلاص شو دَ تجرید په پرو ورغَی سما تَ
عاقبت به مجاز واړه حقیقت شِی اشارت دَی جو فروش گندم نما تَ
پکښ بند په دواړُو پښو عبدالقادر شو
خلاص دِ نشی ستا دَ مینی له حماتَ

ما چه فهم وکړ د دې دَور په بربست شکست ئې په درستی کښ دَی درستی ئې په شکست
هیڅوک هوښیار نشته دَ دنیا پخرابات کښ څوک مستی په مَی کا څوک دَ یار په شونډو مست
سل ځل پیاله دَ صافو ورکړه ترې به واوړی هر چه ئې پیاله دَ درد نصیب وِی په الست

---

۱. لمبو دننه.

۲. مما.

پاڅی ستا په ناسته غم اندوه ځما له دله — جگی جگی تل کړه دا برخاست او دا نشست
څه نسبت دَ مینی چه فرشته به ئې په سپی کا — خاندی و رقیب ته یار هه ځما په قسمت
هر چه معنوی فقر ئې بیا مونده له حقه — لا به محبت دَ زړه په نیست لَری تر هستَ
لوی هلک به واړه اخر تا ته وجار وزی
ځان که لکه مځکه کړې عبدالقادره پستَ

چه بدل په عبادت نکړې عادت — بیا به نه مومې لذت دَ عبادت
چه سبب ئې دَ دوزخ ځما کشتن وِی — بیا دِ نه موم دا هسی شهادت
په نکرځو دَ ناز پښې د لیلی سرې دِی — هوسئ دروِمی دَ مجنون په عیادت
سیادت به دَ طاؤس نه دَ همای وُ — که مونده شوی په چورئ سیادت
دَ استاد په سعی کله ذکا مومی — چه مفطور وِی هغه څوک په بلادت
چه هیڅوک می نه پوښتَنه نه ماتم کا — هغه مرگ دلې هورې دَی سعادت[1]

نمر وته نه گورم گورم زه و خپل نگارتَ — گل ته نظر نکړم نظر کړم هغه رسخارتَ
لِیری له ما مځه ځی چه ځې اروا له تَنه — ومرم که و نه مرم که یَودم شې له ما بیارتَ
باغ وته می بولی نه می بولی دَ یار کوی ته — کوی ته به ئې دروِمم نه به دروِمم و گلزارتَ
ډیر خلق می ولید و می نه لید ستا په څیر یَو — چین ماچین ته لاړم نه چه چین ماچین تا تارتَ
و به چوی له غمه زنهار ووایه مه وایه — راغی خبر را نغی طبیب و خپل بیمارتَ
نور به یاری نکړم کړم اخته په غم یارانوُ — هیڅ ئې را پرې نښول غم ئې پرینښو وَ ما خوارتَ
رایشه چه راشِی تللَی جان عبدالقادر ته
هر څو تللَی جان که تن ته نه رائی په بیارتَ

په اذل چه ئې دَ بدوُ دی سرشت — خواه ناخواه به هغه کاکا رُونه زشت
په هر چا باندِی شوه خپل لاره آسانه — څوک په لور دَ کعبې ځی څوک دَ کنشت
په خندا په هوس تله شِی وَ دوږخ ته — په ژرا په غم په لوری دَ بهښت
ښه وینا په وخت دَ لَو پاخه دهقان وې — ”هر کس بدرود آخر هر آنچه کشت“
زاهدان چه بهښت غواړی و عارف ته — دُوی غلیدلِی هلکان دی دَ دربشت[2]
پریشانی پر همیشه تاثِیر کوینه — ځما ستا دَ زلفو یَو دَی سرنوشت
دَ مقصود په لوری څه عبدالقادره
که په رَو دَ نقشبند ځې که دَ چِشت

---

۱. مقطع نه لری.

۲. یو ډول لوبه.

مخ که واړوی دلبر څما وَ لورتَ — نور به شا کړم دَ فانی دنیا و کورتَ
همیشه دَ جدایئ پدریاب ډُوب یَم — دَ لیدو په هیله سر کړم کله پورتَ
دَ زړه زور دَ صورت توان می هسی کم شو — چه فریاد له کمزوریَ نکړم په زورتَ
غمخواره به څما څرنگ عمخواری کا — چه احوال دَ عشق وایه نشِی غمخورتَ
لاله زار به همه واړه قبرستان شِی — که دَ یار دَ مینی داغ یوسم و گورتَ
توری زلفی ئې دَ مخ په تاو تاویږی — وینبته تاو شی چه نزدې ئې کا وَاورتَ
حد دَ چا دَی چه ئې لاس پر خساره ږدی — کله گوتی څوک وروړه شِی وسَره اورتَ[1]
چه دایم تر رنجو توری بې رنجو وِی — په حیرت یم ستا دا تورُو سترگو تورتَ
چه منکر ته یار ستایې عبدالقادره
په معنی دَ نمر صفت کوې و کورتَ

بیا می نوې مینه ورغله وَ دل تَ — گویا سرې لمبې می پریوتې کوگل تَ
چه دا هسی شان په سرو لمبو کښ اوسِی — پخپل زړه پوری حیران یم ستا وربل تَ
سترگی سرې لاسوُنه سرې جامې گلگونی — گوره بیا درومی دا چا و قتلوَل تَ
کوم کم بخت سړی پښیمان کړې چه رانغلې — تا ویَل چه زه به در شمهَ بورجل تَ
چا چه یَو ځله لیدلَی هغه مخ وِی — سترگی وخوری که به وگوری و بل تَ
دَ راتلو زیری دِ باد په چمن وکړ — سترگی وَختې دَ گلو ستا لیدَل تَ
دا اورو په ژړا لَا کلوُنه وا شِی — کله گوری ښایسته دَ چا ژړَل تَ
لا خندا ئې درسته کړې نه وِی خورشی — څه فایده ده دَ لاله و غوړیدل تَ
چه وَ مخ وته ئې گورم ننداره می — هر گز نه پریږدِی دَ سترگو ځبل تَ
مگر گل به همیشه په باغ کښ اوسی — چه په خواره سترگه گل گوری بلبل تَ
ډمی تار ئې دَ زلفین و ما راکړه[2] — چه ئې کښیږدم دَ کفن و اندرول تَ
وایه وایه دا بیان عبدالقادره
دواړه غوږه می نیولِی ستا وَیَل تَ

بل کړه دَ اخلاص به غوړ څراغ دَ عبادت — موم دَ عصیان ویلی کړه په اور دَ ندامت
سترگی کړه اوره باران دَ اوُښیو څنی دروِمه[3] — گنُدِی دِ میوه کاندِی نهال دَ محبت
هسی رنگه ومره چه خپل ځان له خلقه خلاص کړې — نه ئې چه سبب شِی دَ خلاصئ ستا رحلت
غم دَ نورُو اخله په چا مړده خپل غموُنه — پاته به دِ نوم شِی په جهان دَ فتوت

---

۱. څوک وروړه شی و سره سکورتَ.

۲. کتِ متِ ولیکَل سو.

۳. اوره.

تخم ئې یَو ځل دَ کمینئ په خاورُو پټ کړه
هاله به زرغون شِی دَ لوئئ زراعت
خوښ پخپله بخره شه حسد له هیچا مکړه
هر چا ته رسیږِی خپله بخره خپل قسمت
موړ به هرگز نشِی دَ حرص د کاختئ وَږی
هیڅکله به وږَی نشِی موړ دَ قناعت
ناست په اور کښ ښه یې نه دَ بدُو په مجلس کښ
اور دَ صورت سوځی[1] سوځی دین دَ بد خصلت
سوځی دَ حسد په اور وجود دَ حاسدانوُ
خوښ گرزِی محسود له دغه اوره فراغت
ستا تدبیر دوږخ دَی جنت کار سپارل تقدیر ته
خلاص شه له دوږخه ځان داخل کړه په جنت
پاڅه ساقی راکړه پیاله له میو ډکه
یار، دَ سیند کنار، وخت دَ بهار دَی غنیمت
ستا پیاله چه وڅښم وَیل کړم له خط و خاله
ښه غزل انشا کړم دَ دلبرُو په صفت
یار می باده خور شو څرنگ زه ځنی انکار کړم
شرط دَی دَ یاریَ ځموږ پدین موافقت
ستا په تله می باغ دَ سعادت پژمرده کیږی
وکړه دَ رحمت نسیمه! بیا مراجعت
هر چه له چا اورې غوږ کاږه کړه ترې تیرَیږه
مکوَه عبدالقادره چا سَرَه حجت!

خپلی مینی لیونَی کړم و عالم تَ
اوس به څه له چا مانه کوَم[2] قلم تَ
چه قلم دَ جدایئ ځما واهه شو
په ژړا می سترگی سرې کړې و شبنم تَ
چه دَ نمر اتلس مخه شِی په کښته
مخلوقات به گوری ستا فضل و کرم تَ
زه ملنگ په دوهه پروت دوهه مې خوښه
دَ دوهې دَ لوگی خوند دَی و ملنگ تَ
هر امت چه دَ رسول پیروی نکا
سرنگون به بیا ور درومی جهنم تَ
زه "قادر" ئې بې آتشه په اور وسوم
لږ دَرب دَ پاره وَوایه صنم تَ

## (ج)

نن ئې بیا کښیښو په سر باندِی دستار کج
لکه مست هاتی په لار کوَی رفتار کج
مخ به چیری راته سَم کړی په یاری کښ
له همیش به ئې لری راته نگار کج
فلک تا غندِی ډیر سَم کړه ته وروستی یې
له غروره به تل ځو درومې په لار کج
دانا وران کارُونه جوړ په دانایی[3] کا
په تعجیل سَره نادان کاندِی سَم کار کج
په راستی کښ چه مونده رستگاری شِی
سکه زنهار و چا ته مه وایه گفتار کج

---

۱. سوی.
۲. وایم.
۳. دانا، وران کارُونه ساز په تأنی کا.

هر چه سَم ځِی په روزګار کښ غم ئې نشته همیش غشی مومی تاو دَا ستا کار کج
سبره هیڅ په ټیټو ونو لوئې مکړه ستا به هم کانده قامت کاندی روزګار کج
که فلک ورسره کوږ شِی غم ئې نشته
مکړه خدای عبدالقاد سره خپل یار کج

## (خ)

چه ئې سپیِ کړه دَ دنیا له ځانه چخَ هم هغه کاندِی ځان خلاص دَ دیو له اخَ
چه وَیَل دَ عرفان کا اثر ئې نه وِی ابلیسک دَی ځنی تښته په فرسخَ
په خفیه ذکر ئې ژر مری خفه کړه که شیطان دِ په خاطر کا منګل شخَ[۱]
دَ فراق لمبو وهَلَی را نژدې شه چه سینه دِ کړم په مثل دَ سینې یخَ
ستا دیدن رمق را پاتو دَی پرې پایم جګی جګی یاره ناست اوس را څخَ
د توبې دریاب ئې تا وته پیدا کړ
سپین کړه ځان عبدالقادره له وسخَ

## (د)

که دَ نورُو توانګری په سیم وزر دَه دَ عاشق دَه په سپین زړه په چهره زردَ
لکه تږَی له سږو اوبو خط مومی مشتاق لا مومی لذت دَ یار له دردَ
په سپین مخ دِ ویښته ندی تور لوګی دی چه وتلَی دَی ځما له آه سردَ
چه دَ توری مخ ئې سور کړ پمیدان کښ هم هغه سرخ روئی یوسِی له نبردَ
بل ګناه ئې بې مردئ نه ښکاریږِی چه نامرد سړَی کینه کاندِی له مردَ
که په شاه باندِی په کیش په سمور تیر شُو ګدای هم په ګنَد کښ روغ وَوت له بردَ
په نامرد مشک و عنبر لونې فلکه آلوده لرې دَ مرد چهره له ګردَ
خپل نصیب کړ په تا خار عبدالقادره
یار که هر څو حسن زیات لَرِی تر وردَ

نا آشنا تر آشنا ښه ئې نن اوکاندَ لدې پسه زړه له چا سَره مه خاندَ
که ئې لوی دَ زړه په وینُو لکه ګل کړې هم هغه به په زړه درکاندِی شنه تاندَ
چه ترې سر ئې ځان لوګی کړې قربانیږې دَ جفا په اور دِ سوځی لکه سپاندَ

---

۱. ښخ.

خپل پردِی ته ځای دَ طمع پاته نشو    خدای دِ نکا څوک پخپل چارُو درماندَ
دَ عزت[1] ترخو ته ځان نیولَی نشې    په خوړو پسې دَ مچ عُندی گرزاندَ
بې اجله به ئې خلاص له درده نشې    دَ بدخوی سیاره[2] په چا مشه هړاندَ
دَ ستم په ښکر دِ غوځ[3] عبدالقادر کړِ
په ظاهر صورت سړَی په خوی یې داندَ[4]

زه دِ تل وینم وزان دَ سحر بادَا!    په مقدم دِ شی سینه دَ عمجن ښادَ
چه ئې لاس دَ دلاسا په تندی کښیږدې    قراری دَ بیمارو شی له فریادَ
نه تنها فیض نثار کړې په گلونو    لا خارُونه امیدوار دِی ستا له دادَ
په ښه بوی دَ باغ گلونه معطر کړې    په نفس کړې دَ غنچې غوټې[5] کشادَ
ستا په راغله دَ باغ ونی زر ریزی کا    سبر ته دَ بار له باره کړې آزادَ
پرورش دَ بهره مندُو بوټو وکړې    بې بهرې بوټې وکاږې له بنیادَ
چه تر منځ دَ قاصددانُو لارِی بند شِی    پیغام یار ته دَ یار راوړې له هِوادَ[6]
و یعقوب ته دِ خبر دَ یوسف راوړ    نامراد دِ هم آغوش کړِ له[7] مرادَ
دَ وصال په زیری هسک عبدالقادر کړه
پرې یستلیَ دَی هجران له لادَ بادَ[8]

صاحب دَ ولایت نمک له هندَ    د دې دواړُو یې ساز شوَی ځما جندَ
دَ کوثر دَ اوُبو آب دِ مخ لرینه    دَ مشتاقوُ ځنی نه ماتیږِی تندَ
په دا دوه حرفه ادا مسلمانی دَه    هر چه نه پسندې په ځان په چا مه پسندَ
هر پیوند ئې دَ ذلت قطعیت[9] کاندی    پادشاهی تر تا قربان دَ عزت گندَ
چه ئې اوس په ټولَولُو نه مړیږې    هم دا خپل دولت به وکا پټا شندَ

---

۱. که عزت، عزلت شی ښه نه وِی.
۲. یعنی سالنډی.
۳. خوړ.
٤. x.
٥. غوټه.
٦. هیواد.
٧. نامرادَ هم آغوش کړې له مرادَ.
٨. له آدبادَ.
٩. قلعیت.

د زاهد له صومعو عبدالقادره
وَوزه مراد دَ خپل خاطر غواړه له رندَ

اې په زنی ناشپاتی په شونډُو قندَ
په قامت تر سبروَنی لا بلندَ
خوش خرامَ گل اندامَ عنبر مویَ
خود نمایَ خود ستایَ خود پسندَ
که زاهد دَی که عابد ترې نه خلاصیږِی
خلقې دِ کړې په تورُو زلفو بندَ
منور دِ کړِ عالم دَ مخ له نوره
لکه نمر په تمامی عالم څرگندَ
ستا په تَش نظر می رنځ دَ زړه ورکیږِی
یَو ځل وگوره و ما ته سترگی برندَ
په هجران به دِ ترکومه خوار و زار یم
په وصال می بهره مند کړه بهره مندَ
هر قدم په فهم ږده عبدالقادره
دَ عشق لار کوهی کوهی ده کندَ کندَ

## (ډ)

چه مې ولیده دَ یار سره اغیار گډ
په فریاد شوم په ژړا شوم په جیغار گډ
آئینه دَ زړه صفا له خاکساریَ شِی
هم په دا له تورُو خاورُو شه خاکسار گډ
عندلیب دَ زړه له تاوه نارې وکړې
چه ئې ولیده له گله سره خار گډ
هر یو گل می په زړه خار غندِی څرخیږی
چه بې تا شم کله کله په گلزار گډ
ستا په زلفو کښ می زړه هر گور پریشان شو
مسلمان دِ نکا خدای په هندوبار گډ
نادانی نادان همیش لَرِی په عیش کښ
هوښیاری دَ غم په سیند کاندِی هوښیار گډ
چه آخر ځنی واته په ډیر ارمان دِی
نه به شِی عبدالقادر په دا بهار گډ

## (ر)

مزین ئې کا یَو څو په افسر سر
بیا ئې مات کا دَ دوران غضنفر فر
اورنگ زیب به څه خلاصی ور ځنی مومی
دا مزری دارا شکن دَی سکندر در
ځکه نوم ئې دَ ذهب ور باندِی کښیښو
چه دَ باد غنُدی هر دم کا گذر زر
نن په څو له تورُو خاورُو سره پروت دی
چه ئې ډک وُ همیشه په دلبر بر
برایه می آشنا ولیده په خوب کښ
په ژړا می کړِ په اُوښیو بستر تر
که په اصل واړه یَو دی په دا څه شُوَ؟
په قیمت سره سم نه دی گوهر هر
په معنی کښ بشر نه دَی پړانگ لیوه دی
چه دَ ده دَ لاسه مومی بشر شر

هر سړی پخپل مقدار خریداری کا ځنی آس ځنی ټټوان ځنی خرخر
په ښکنځل ئې سرفراز عبدالقادر کړه
دَ ژوندُون له باغه خوره دَ سمنبر بر

که هر څو لعل آبدار لری دلبر نشو هیڅکله پرې یخ دَ چا ځگر
دَ هغو شهلا نرگسو له فراقه همیشه می تر نرگسو ځی گوهر
هر یَو گل ئې دَ ښایست دَ باغ منظور وِی ولی لا ئې په سمن لگی نظر[۱]
راشه وگوره ځما زیبا صنم ته که به گورې په یَو ځای هلال قمر
سر و سر دَ خجالت په مځکه کښیښنو چه سر هسک کړ په بستان دَ یار عرعر
دَ ژوندُون چینه یادیږی په تیاره کښ ما ته خدای راکړه چینه[۲] تر څنگ دَ نمر
چه سنبل ئې باد پریشان په نسترن کا په غروب شِی دَ عاشق دَ بخت اختر
چه غنچه ئې شگفته په تبسم شِی له گوهرو ئې جهان شِی منور
که له ډیره رشکه وچوی حد ئې څه دی چه له ملا سره ئې مو وهی کمر
که ئې نوش عبدالقادر دَ شکر مَی کا
پرې به شِی دَ مرگ تلخی شهد و شکر

بربر راشه ځما دَ سترگو تورَ خدای می مکړه دَ زړه مینه لتا نورَ
ځما ستا له مینی هر څوک[۳] خبردار دی څه به ویره کړې له شرمه له پیغورَ
عاشقان له تهمتونُو نه خلاصیږِی همیشه باندِی غوغاوِی لور د لورَ
سپی که هر څو غپا ډیره کا مزری ته مزری هیڅ نکا پروا دَ ده له شورَ
که نمځن[٤] وَیَل دِ نکیږِی و ماته کله کله راته کړه خبره سپورَ
چه رقیب وته ښکنځل کوې زه سوځم جگی جگی بې له ما نه مه زورَ
مستغنی ئې دَ جهان له بادشاهۍ کړم دَ همای تر سیوری بهَ دَه ستا سیورَ
څو دِ توری سترگی توری خاوری ندِی
تل پر مخ عبدالقادره دَ یار گورَ

۱. هر یَو گل مي دَ ښایست دَ باغ منظور دَی ولی لا می په سمن لگی نظر
۲. ما ته خدای کړه دا چینه.
۳. ډیر عالم خبر شو.
٤. په دواړو نسخو کښ دغسی دَی.

مخ په هر لوری جلوه کَوِی دَ یار[۱] | البصروا البصروا اولوالا بصار
بې محابا راکره کښېږده قدم | لیس في الدار غیرنا دیار
په بد صحبت دَ نبی زوی شه خراب | اتقوا من مجالس الاشرار
په ورکَول دَ سر وصال مونده شي | ابشروا یا معاشر التجار
طعن و پیغور و ما ته مکړه شیخه! | انا عاصی و ربنا غفار
که رقیب ووینې له یاره سره | قل اعوذبرب لیل و نهار
دَ څواب څوک دی چه آواز وکاندی | لمن الملک واحد القهار

رب ښه یار عبدالقادر ته ورکړ
وقنا ربنا عذاب النار

نه به ستا دَ ښایست[۲] تَل وِی هسی دَور | نه به زړه وِی دَ عاشق مدام په څور
چه دا دواړه بقا نه لرِی تیریږِی | بیهوده هومره ستم کړې هومره جور
زړه دِ سخت دَی په سختۍ تر سخت کاڼی | که درست تن دِ مصفا دِی تر بلور
بې جوهره ښایست نه لَری هیڅ قدر | دَ شاهانو په لاس باز کښېنی نه میور
چه په بد نظر نظر وکړې اُوبه شم | څه حاجت دَی په ما خوار دَ هومره زور
مخ له یاره جار یستل خندل رقیب ته | واه واه واه عجب یاری دَه عجب طور

هسی یار عبدالقادر په بخره بیا مونده
چه صورت ئې دَ سړِی، خصلت دَ بور[۳]

اې چه دَ ښایست په باغ کښ گل لرې بې شمارَ | هیڅ به دِ کم نشِی یَو څو گل ور ځنی مارَ
شونډِی ئې مهره زلفی ښامار ترې جار وتلی | بویه سربازان چه مهره اخلی له ښامارَ
څما و ستا تر منځ د څما ستا وینا نه بویه | نشی په یاری کښ به همار او تمارَ[٤]
سخت دَی دَ نیمگړِیو طبیبانُو ناز تر مرگه | مرگ ته غاړه کښېږده دارُو مه کوَه بیمارَ
پاس په بام وَلاړه دَ غمزې ناوک په گرت[٥] کښ | زړه به دِ زخمی کا، په دا لاری مه څه یارَ[٦]

---

۱. مخ په هر نور جلوه گر دَی دَ یار.

۲. حسن.

۳. یعنی پلنگ.

٤. هندی دی یعنی ماته او تاته.

۵. دَ لمر توری په پیښ دَ گوتی منځ ته وائی.

٦. دا بدله مقطع نلَرِی.

زړه می هر گور وُ له هجرانه افگار
شکر حق را که باز آمد یار

سر و سر کوز له انفعاله کاندِی
چون خرامد بسوی باغ نگار

څوک به لاله دَ یار دَ مخ کا مخی
آن سیه دل کجا و آن رخسار

په موافق دَ محبت شِی عتاب
مشو از جور یارِ خود آزار

متحیر ئې په لیدو دَ جمال
همه خوبان چو صورت دیوار

خو اتصال دِ دَ عاشق شِی نصیب
خواه در باغ و خواه بر سردار

باغ و شاهد ښه ښه یاران موجود
خیز ساقی شراب ناب بیار

گوره بیا کله رایشی هغه وخت
که نهم لب بلب شکربار

نور دَ زړه مراد عبدالقادره پرېږده
گر بیا بی مراد دل این بار

یار هغه چه گهی مهر کا گاه قهر
کله کله نوش دارُو شِی، کله زهر

گاه باران شِی دَ ژوندُون اوبه کا نَوِی
گهی اور شِی سرې لمبې کا تمام ښهر

که دا هسی یار مونده شِی پطلب کښ
سستی مکړه هم ئې پټ غواړه هم جهر

شپه او ورَځ آه و فریاد سوز و گداز کړه
له هجرانه روان کړه د سترگو نهر [1]

و عاشق ته دَ یار غم هر گور ارزان شِی
که مونده شِی په تمام هوس دَ دهر

گوره څو عالم به ورك څوک به خراب کا
لور په لور دَ فتنو سیند وَواهه لهر

دَ زړه باز به دِ هاله دَ فکر ښکار کا
که بیدار وِی په وروستی په وړومبی پهر [2]

که هر څو عاقل هوښیار خو لیونَی شِی
چه به خوب کښ ور ښکاریږی پریچهر

په ارمان په حسرت لاړل له جهانه
که پرویز وُ که دارا که منوچهر [3]

## (ړ)

چه ئې زړه څما سورَی دَ عشق په تیر کړ
تر هغه سوری می مخ دَ اشنا څیر کړ

ستا دَ مخ آفتاب پر وخوت پرې رڼا شوه
چه ئې ستا په تورو زلفو کښ شبگیر کړ

له هوسه په خندا خندا په شا ولاړ
سخندانؤ چه گل ستا دَ مخ نطیر کړ

چه ئې زړه دَ یار په وصل کښ خوشحال وُ
یَو په سله تر هغه هجران زهیر کړ

---

۱. دا غزل په یَوه نسخه کښ نسته، په دې نسخه کی دا مسرئ ناقصه ده.

۲. په منقول عنها نسخه کی نسته.

۳. په منقول عنها نسخه کی مقطع نلَرِی.

له دې اوره سوزان اور دَ بیلتانه دی ځکه ځان هندو وسولُو وته خیر کړ
له هجرانه به څه ډار عبدالقادر کا
چه ئې خیال دَ یار د مخ په زړه تصویر کړ

ښبړ دِ بیا هجرانه ډیر عالم به غم کړ کور په کور دِ په دې ملک نوَی ماتم کړ
چه څو کاله می[1] ټول کړی په خواری وُ هم هغه عیش دِ بدل پغم په دم کړ
له پیچونی[2] د دَ غم سپاره ښکاره شول دَ هوس لښکر دِ درست برهم درهم کړ
تور لوگی دَ آه له هَره ځایه خیژی رڼا ورځ دِ پعالم باندِی تور تم کړ
لکه تا کړه دَ امید غنچه سبړ تویه خزان کله په گلونُو دا ستم کړ
بلبلان ئې له فراقه په نارو شول له دې غمه دِ دَ سبر گردن خم کړ
سن زر سل دَ جدایئ څورلس دَ پاسه دا غزل مِی په بیاض باندِی رقم کړ
نور به څه عبدالقادر له چا خندا کا
تا سبړ کال دَ اشنایئ قدم کم کړ

## (ز)

خو خبر نه دِی وگړی له دې رازَ گنه بیل حقیقت نه دَی له مجازَ
عارفان چه له خودیه ځان خالی کا تسبیح اَروی دَ شپیلئ[3] له آوازَ
که په عشق کښ نسب شرط دَ محبت وَی دَ محمود مینه به نه وه له ایازَ
امتیاز ئې تر منځ حسن را پیدا کا کنه فرق دَ بد خویئ نشِی له نازَ
چه ئې ونغښته لَمن له خار و خسه سبرونه شوه په باغ کښ سر فرازَ
چه آغاز دَ چاری ښه انجام ئې ښه شی دانا ځکه تل په بیم دَی له آغازَ
زه پدا و خپل مَین ته پیښکښ نه وړم چه کمی دَ هیڅ څیز نلَری بې نیازَ
ستا به ساز بې سوزه هیڅ سَره و نشِی اې ځما دله تمام له سوز و سازَ
سیند خونی، باد مخالف، شپه توره تمه گوره چرته به شې سر ځما جهازَ
لوَړه تنده رنځ زحمت نوری خواریَ همگی واړه آسانه دِی تر آزَ
چه خپل یار عبدالقادر ته په نیت ښه وِی
نور ئې کومه اندیښنه دَه له غمازَ

---

۱. ئې.
۲. دا کلمه که په نون وِی په معنی دَ ډیر گوچنی او ذره وشمه شی راځی، او که په میم وی (پیچونی) یعنی لوړتیا، بلندی.
۳. شپیلیه.

## (س)

ته ور درومه خپل هوا کوَه هوس        تر هغه چه دِ پخوا کړ یَو په لس
له ازله غم ځما دَ زړه نصیب دی        چه خلاصی می ځنی نِشی یَو نفس
گله تا دِ خدای تازه لَری پیاغ کښ        اور په بخره دَ اغزَیوُ دَی دَ خس
ما ژوندَون دَ محبت له اوره بیا موند        ځکه سوځم په اختیار لکه ققنس
چه خپل زړه را ځنی ځی نیوی ئې نشم        ستا په زړه به څرنگ مومم دسترس
ساقی زه دَ صافو میو لایق نه یم        هزار شکر که دارو کړې دَ بکس[1]
په سرو شونډو ئې تور خال دَی چه ښکاریږی        که دا نښتی دَی په شهد وکښ مگس
که وصال عبدالقادره دَ یار غواړې
یَو قدم په دنیا کښیږده بل په نَس

## (ش)

خیال ئې چه په زړه کښ دَ رخسار ساتم همیش        ننه په کوگل کښ گویا نار ساتم همیش
بحر په کښتیَ کښ نه ځائیږِی سیند دَ اُوښیو        ثو به زه په سترگو کښ حصار ساتم همیش
ستا چه خوشحالی کیږِی، ځما په خواریدلو        پسله دې به ځان تر خوارو خوار ساتم همیش
عیش منغض شِی په ورتله ځما دَ خلقُو        ځکه له عالمه ځان کنار ساتم همیش
ډیر را باندِی خوږ دی په بَل چا می پیرځو نشی        پَټ ننه په زړه کښ ستا آزار ساتم همیش
خوښ ئې په آواز یم چه فریاد عبدالقاد کا
ځکه ئې دا هسی شان افگار ساتم همیش

## (ښ)

دلبر مخ راته ښئِی به هر آئین کښ        که په تور کښ جلوه گر شِی که په سپین کښ
گه په زلفو کښ ځای وکا زړه را کاږِی        گه په سترگو په رخسار او په جبین کښ
کله کله په ترسا کښ مخ څرگند کا        دَ صنعان په دود ئې وران کاندی په دین کښ
په څراغ کښ تجلا وکا پتنگ ته        بلبلانُو ته ښکاره شِی په نسرین کښ
نور او نار ئې دَ جمال جلال اثر دَی        قهر مهر ئې په تریخ او په شیرین کښ

---

١. راحت زاخیلی لیکی، چه بکس یعني خورا لَږ او نه څه، خوشحال خان وائی:
نورُو حریفانو ډکی ډکی پیالې نوش کړې        ښه چه دَ خوشحال پیاله ئې ډکه په بکس کړه. له موقعه سَره درُد هم جوړیږِی!

که اثر ئې دَ لبانو پکښ نه وِی
نه به وُ هونبره خواږه په انگبین کښ
یَوه خدایه عشق یَو څرنگه لوی شی دی
چه ئې ځای نِشی په چرخ او په زمین کښ
گنج همیش په ویرانه کښ ښخاوه شِی
امانت ئې ځکه کښیښو په کمین کښ
په هر څه کښ گوره یار عبدالقادره
که دِ نشته شک گمان پخپل یقین کښ

## (ط)

چه صادر شو ستا له لوریه په ما خوار خط
له خاطره ئې اندوه کړ تار په تار خط
معطر له خوشبویۍ اهل دَ مجلس شُو
چه می واکړه لفافه دَ عنبر بار خط
په تحقیق چه نیم دیدن ور لَره یُو سِی
له هِواده چه یار وکاندِی په یار خط
سبزه نه ده چه په مزکه زرغونه شوه
دا دَ خپلوُ راتلو را ستاوه بهار خط
حسن خط دَ ویزارۍ و مخ ته ورکړ
چه ښکاره شو به عذارُو دَ نگار خط
هیڅ زنگی به ئې په هیڅ رومی ونکا
لکه کاندِی په سپین مخ باندی ناتار خط
ستا دَ شونډُو مهره څوک واخلی دلبره
چه ترې پریوت چاپیره لکه تور مار خط
دَ ښایست آفتاب ئې پټ شُو لیدی نشی
چه ئې پاڅیده په مخ لکه غبار خط
دَ ده کبر ستا اندوه ئې له زړه کم کړ
منت کړ عبداقادره په تا بار خط

## (ظ)

که هر څو نصیحت ښه وایې واعظَ
بهتر دَی چه ما ته نه وایې واعظَ
عاشقان په عشق کښ کله نور څه اَروِی[1]
و کتِو ته وعظ څه وایې واعظَ
نصیحت و لیونی ته لیونتوب دَی
که پاخه وایې اومه وایې واعظَ
په خاطر باندِی می سخت تر کانِی لگی
پند که نرم تر اوبه وایې واعظَ
لا تر ما په زړه کښ ته باندِی مَین یې
مذمت دَ عشق په خوله وایې واعظَ
په خلوت کښ په خلاف دَواړُو کار کړې
هر چه ته په منبر ښه وایې واعظَ
ستا وَیَل را باندِی ځکه اثر نکا
چه ته نکړې هر چه ته وایې واعظَ
تر گنډیر دِی لا ترخه عبدالقادر ته
که هر څو ورته خواږه وایې واعظَ

[1]. عاشقان بې عشقه کله نور څه اَروِی.

بې ما څوک ځما له یاره مومی حظ
ږانده کله له گلزاره مومی حظ
دَ یار مخ دَی منور دَ خدای له نوره
کافر کله له دیداره مومی حظ
فقیرانُو ته ښکاریږی سرې سکروټې
دنیا دار که له دیناره مومی حظ
طالبان دَ دنیا سپی، دنیا مرداره
سپی هر کله په مرداره مومی حظ
نس مگس ریاضت، اور، ور ځنې تنبتې
زړه پتنگ، پتنگ له ناره مومی حظ
په مجنون دَ هلکانُو کانې گل دی
څو ئې ولی هونبره واره مومی حظ
دَ آزار قدر دَ نورُو څخه نشته
عاشقان دِ له آزاره مومی حظ
خاص الخاص عبدالقادره پرې پوهیږی
عام به څه ستا له اشعاره مومی حظ

# (غ)

یَو ځل بیا هغه نگار ولیدی دریغَ
هوسئ سترگی گلرخسار ولیدی دریغَ
چه قرار ور ځنی لاړ له ډیره غمه
بیا هغه خاطر قرار ولیدی دریغَ
دَ پسرلی گلوُنه وا په باغ او راغ شوی
دَ بلبلوُ پرې چیغار ولیدی دریغَ
په خندا خندا راتلی تنې شلیدلی
له مستئ ئې خپور دستار ولیدی دریغَ
چه له ډیره کبره سَم نه ځی په لارِی
هغه ترک کوږ رفتار ولیدی دریغَ
چه په تله ئې نور ځما له سترگو یووړ
ښایسته نور الابصار ولیدی دریغَ
دَ بیلتون ئې اندیښنې له منځه ولاړی
یار له یار سره کنار ولیدی دریغَ
په عاشق باندې ئې مهر رنگا رنگ کړی
تر نظر ئې رقیب خوار ولیدی دریغَ
چه په هجر کښ ئې حلق ځما تریخ کړ
په دوو شونډُو شکر بار ولیدی دریغَ
پاس په زړه باندی می میشت دَ غم لښکر دی
دا لښکر می تار په تار ولیدی دریغَ
دا آرزو عبدالقادر لَری په زړه کښ
چه دَ مرگ پخوا خپل یار ولیدی دریغَ

چه آخر به ځنی درومی سینه داغ
بیهوده باغوان نازیږی په دا باغ
چه داخل دِی دَ دنیا په خرابات کښ
په وار وار به واړه څښی دَ مرگ ایاغ
تش ساتل دَ ده نصیب نور به ئې یوسی
په دنیا دنیا دار ولی کا دماغ
دَ بلبلوُ غنُدی گښت په گلو نکا
په مرادره باندې ناست وِی لکه زاغ
په طلب ئې بادشاه گرزی گدای بیا موند
که آرام که آسایش دَی که فراغ
په لحد کښ به دَ شمع رڼا نه وِی
مگر یوسې در سره دَ آه څراغ
سرې سرې اُوښی دَ مجنون دِی څڅیدلی
ریژیدلی لاله گل ندی په راغ

دَ نیستیٔ په لاری ځه عبدالقادره
گنُدِی بیا مومې دَ یار دَور سراغ

| | |
|---|---|
| یَو ځل بیا هغه نگار ولیدی دریغَ | هوسیٔ سترگی گلرخسار ولیدی دریغَ |
| چه قرار ور ځنی لاړ له ډیره غمه | بیا هغه خاطر قرار ولیدی دریغَ |
| دَ پسرلی گلوُنه وا په باغ او راغ شوی | دَ بلبلوُ پرې چیغار ولیدی دریغَ |
| په خندا خندا راتلی تنیٔ شلیدلی | له مستیٔ ئې خپور دستار ولیدی دریغَ |
| چه له هډیره کبر سَم نه ځې په لاړِی | هغه ترک کوړ رفتار ولیدی دریغَ |
| چه په تله ئې نور ځما له سترگو یووړ | ښایسته نور الابصار ولیدی دریغَ |
| دَ بیلتون ئې اندیښنې له منځه ولاړی | یار له یار سره کنار ولیدی دریغَ |
| په عاشق باندی ئې مهر رنکارنگ کړی | تر نظر ئې رقیب خوار ولیدی دریغَ |
| چه په هجر کښ ئې حلق ځما تریخ کړ | په دوو شوندوُ شکر بار ولیدی دریغَ |
| پاس په زړه باندی میشت دَ غم لښکر دی | دا لښکر می تار په تار ولیدی دریغَ |

دا آرزو عبدالقادر لَری په زړه کښ
چه د مرگ پخوا خپل یار ولیدی دریغَ

| | |
|---|---|
| چه آخر به ځنی درومی سینه داغ | بیهوده باغوان نازیږی په دا باغ |
| چه داخل دی دَ دنیا به خرابات کښ | به وار وار به واړه څښی دَ مرگ ایاغ |
| تش ساتل دَ ده نصیب نور به ئې یوسی | په دنیا دنیادار ولی کا دماغ |
| دَ بلبلوُ غُندِی گنبت په گلو نکا | په مرداره باندِی ناست وِی لکه زاغ |
| په طلب ئې بادشاه گرزِی گدای بیا موند | که آرام که آسایش دَی که فراغ |
| په لحد کښ به دَ شمع رڼا نه وِی | مگر یوسې در سره دَ آه څراغ |
| سرې سرې اُوښی دَ مجنون دِی څڅیدلی | ریژیدلی لاله گل ندی په راغ |

دَ نیستیٔ په لاری ځه عبدالقادره
گنِدی بیا مومې دَ یار دَور سراغ

## (ف)

| | |
|---|---|
| دروغجن وعده خلاف | نه دې کا دَ مردیٔ لاف |
| شاهدی لِی دَ دروغُو | پخپل ځان باندِی خلاف |
| نه یَو درنگ دَ یار په کوی کښ | نه سل کاله اعتکاف |
| دَ کعبې تر طوافونو | ښه دَی لا دَ زړه طواف |
| زړه په مثل آئینه دی | تن په مثل دَ غلاف |

هاله مخ پکښې لیده شي | چه ئې مخ لَرِی تَل صاف
اسمان خونه دَ فقیر دَه | نالی مځکه نمر لحاف
قوت ئې خپل خون جگر وِی | منت نه وړي دَ اجلاف
رگ ئې تار تن ئې رباب وِی | بڼَغ ئې تَل دَ یار اوصاف
تل انصاف ورکَوِی بل ته | له چا نه غواړی انصاف
چه په ښه خصلت شریف وِی | هم هغه گڼه اشراف
په نسب چه خوی ئې بد وِی | نسب کله دَی معاف
یویَو ناف دَی چه نافه شِی | نافه کله شِی هر ناف
ستا قسمت عبدالقادره | نون پیوند نوه له کاف[1]

هاله وشه حرص مکړه
که مؤمن یې په حاقاف

چه قانع په یَوه څاڅکی شِی صدف | قیمتی گوهر ئې ځي په هر طرف
که عزت غواړې قانع پخپل قسمت شه | ورکړه کړه که بزرگی غواړې شرف
بندَول دَ دنیا بند دَ جهنم دَی | آزاده وُ ځکه کښیښوله په کف
دَ دنیا خلق می ولیده په سترگو | یَو ئې جمعَ په حرص کا، بَل تلف
چه ژوندُون همیشه نشته پدا څه شو | په حشمت که سلیمان شې یا آصف
چه سړی څربښت په علم په حکمت شی | دَ څارویو څریدل وِی په علف
که ځوانمرد یې بل آزار مکړه په گلُو | ځان دَ ښو دَ بدُو تیرته کړه هدف

تل له خدایه ترس کوَه عبدالقادره
حق خائف ته دِ وَیَلِی لَاتَخَف!

## (ق)

سر او مال می شو تالا په تور د عشق | لا می ندی لاړ له سَره شور دَ عشق
بڼایی دَ عاشقانوُ په پیغور دَه | ما منَلَی په تندِی پیغور دَ عشق
دَ ایاز تَلِی محمود کښیښول په سترگو | نندراه کړه گوره زور و شور دَ عشق[2]
څو دَ یار دَ قامت خیال ئې مستی نشِی | په نور څه به نشِی هسک نسکور دَ عشق
له اوله ئې دَ شمع لړمون وسو | له غه پسه پتنگ وسو اور دَ عشق

---

۱. دا مسرئ حل غواړی، کټ مټ ولیکله شوه، په وروسته بیت کښې ح،ق حق دَی.

۲. زور د شور.

پە کوگل کښ مې زړه ندَی کە باور کړې — دَ صورت پە خاورُو پټ دَی سکور دَ عشق
پیادە پښې ابلی[۱] تە دَ یار پە لورې — دَ مجنون غنُدې بە نە وِی سور دَ عشق
کە دا ځل لە عشقە خلاص عبدالقادر شې
نوم بە وانخلی پە ژبە نور دَ عشق

لە صادقە مخالف دَی منافق — منافق لە منافقە موافق
لیونی و بیدردانُو تە ښکاریږی — د عاشق قدر پە چا دَی پە عاشق
دَ عذرا عذار ئې عقل ځنی یووړ — کە مجنون شو عذر عشق وُ دَ وامق
شکر نن ئې مِیِن نوم را باندې کښیښ — کە هر څو ددې نامە نە وم لایق
فوقیت پە پاس ناستې نە حاصلیږی — کلە خس پە مرغلرُو وِی فائق
چە بە ستا لە ورە ځم دَ سر پە ویرە — زە بە چیری پە ځان نوم بږدم دَ آبق
کە طالب یې دَ وصال عبدالقادرە
لمړَی لیری کړە لە دلە علائق

## (ک)

خدای دِ راولە ځما یارە ملوک! — بې تا خلاص نە یم یَو دم لە دردە دوکَ
دَ زخمی زخم ئې ورځ پە ورځ خوږیږی — ستا شیتیَ وە شیتیَ عین دَ پړانگ نوکَ
محبت ئې هسی رنگ پە یَوَە رنگ کا — چە هیڅ فرق دَ مالک نشِی لە مملوکَ
پر یو تلی ئې ورځی تحت الثراتە — تر اسمان دَە لا بلندە دَ زړە څوکَ
خدای دِ لاس دَ هغە لیندی دواړە پریکا — چە شیدا بلبل ئې وَویشت پە مشوک
دَ کشمشو پە لذت بە څە پوهیږی — چە ئې خولە وِی عادت شوې لە املوکَ
چە ئې نە وِی حال احوال دَ سالکانُو — څە فایدە چە قیل و قال کا لە سلوکَ
لکە څوک چە پە ویشتل دَ گلو خوښ شِی — هسی خوښ شِی مشتاقان دَ یار لە سُوکَ
چە بې درد دِ خبر دار لە دردە نشِی
پە زور مە کوَە عبدالقادرە کوکَ

۱. مخفف دی د تلَە یا تلَی.

## (گ)

چه په سترګوُ څراغ وَوینِی پتنګ
څو وَ نه مرِی ژوندُونه وِی په تنګ
دَ وصال په طمع ژر تر سره تیر شِی
بې جانانه ورته کال ښکاریږِی درنګ
مرجونړا چه غواصی کا په دریاب کښ
یا سر بایلِی یا ګوهر راوړِی په چنګ
نام و ننګ به آواره دَ یار په درد کا[1]
هر عاشق چه څه حیا لَرِی څه ننګ
هغه یار بې رنګه ډیر لَری رنګوُنه
عاشقانُو ته جلوه کا په رنګ رنګ
له یَوه غمه لا خلاص نه وِی بَل راوړِی
نن می زړه کاوه له سرګو سَره جنګ
په دنیا کښ اولیاوُ ځان مخفی کړ
په خشکه کښ کله ځای شِی دَ نهنګ
په اَړخونو ئې لک شوی غشی ښه دِی
نه چه کښینِی بد کاران دَ چا تر څنګ
دَ لویانوُ په مدد که چیری تیر شې
غاښی سخت لرې دَ وړاندِی ټټولنګ
دَ یار یاد لکه صیقل زره پرې صفا که
آئینې دِ دَ خاطر ونیوه زنګ
شاه ګدای په اجل واړه برابر شِی
چه له تنه ځان دَ تلو وکا آهنګ
چه آخر احوال دَ واړُو سره یَو وِی
څه ناستې په تورُو خاورُو څه اَورنګ
ډیر ئې تا غُندِی ځار کړِی تر خپل سر دِی
دا دنیا لکه مجوغنه ته یې سنګ
څه ئې پاتو شِی دَ ورُوستو څه به غم کا
فراغت په وخت دَ کوچ درومی ملنګ

شهسواران عبدالقادره تر تا تیر شول
ته هم اوس کړه پسِی ټینګ دَ یابُو تنګ

ته که خپله څهره نلَرې بدرنګَ
آئینه په کوُم ګناه وهې له سنګَ
چه سبا ئې دَ ښایست بازار خپریږِی[2]
شمع ولی مخ پُټی کا له پتنګَ
دَ بلبلُو آوازُونو دَ ګل حسن
مستغنی کړم نوبهار له راګه رنګَ
بیا طالع را سره روغه کا پوهیږم
یَو زمان چه را سره نه وِی[3] بې جنګَ
چه ئې رشک په سیوره کړم چه ورسره وِی
ترو به څو ګورم اغیار دَ یار له څنګَ
هر چه کړې کوَه یَو دم را ځنی مه ځه[4]
ګوره اوس به چرخ څه پیښ کا له درنګَ
لاس کچکول مسله مزکه درته بس وِی
که کچکول مسله نه لرې ملنګَ
لیونی لیونی وائی لیونی ته
لیونی دَ دنیا خونه نه کړه ړنګَ

په تاریکه لار باریکه په کمر کښ
فهم کړه عبدالقادره له ګړنګَ

---

١. نام و ننګ به صدقه دَ یار تر سر کا.

٢. خوریږی.

٣. نه بې.

٤. نصیحت ګڼه یَو دم.

## (ل)

سحر دا آواز می غوږ یوست له بلبلَ
ستا خندا په ژړا کښې یستلم گلَ
تر مستۍ ئې لا لزت دَ خمار ډېر دَی
ستا دَ سترگو مستی بده دَه ترملَ
ښایسته دَ زمانې دنیا پرست وِی
په کوڅه کښې ئې پَل مه کښېږده بې پولَ
په چغلی می ستا په یار مینه زیاتیږِی
څو د زړه هونبره چغلی کوَه چغلَ
ساقی مَی چه راکوې په قهقه خانده!
زده کړه دا دَ صراحۍ له قلقلَ
دَ لیدونیو په نظر کښې تفاوت وِی
او که نه وِی جز جدا ندی له گلَ
په پریشانۇ اندیښنو خاطر پریشان شيِ
جمعیت مومی خاطر له توکلَ
چه ستا مخ ورته حاضر وِی گل به گوری
دَ هغه سترگی دِ خدای نکا بې گلَ
دَ مجلس روښنائی ته ئې ته دِ ناست یې
کوم نقصان دَی که صبا کړه ډیوه گلَ
دا دنیا په مثال پُل دَ آخرت دیَ
تیر شه ژر عبدالقادره له دې پلَ

هیڅ خبر ندی له حاله له احوال
غم ښادی مومی سړی له خپله خیالَ
دَ محنت په تصور ملال غمجن شيِ
دَ راحت په فکر مست گرزی خوشحالَ
بندیوان په بند بندی په خوب کښې وینی
چه بادشاه دَ ولایت یم بې زوالَ
تفرج کوَم په باغ او په بستان کښې
هم بالینه می دلبر پری مثالَ
بادشاه پاس په تخت اوده وینی په خوب کښې
چه بندی یم په زندان کښې په څوکالَ
وږَی تږِی خوار خسته په بند کښې پروت یم
کم قوته، بې حجته، بې مجالَ
هغه خوښ په هغه خوب کښې دا دلگیر وِی
دَ ویښوالی حال ئې هیر بې قیل و قالَ
دا غافل عالم همه په خوب اُوده دی
په قیامت به شيِ واقف له خپله حالَ
دا دنیا په مثال شپه ورځ آخرت دی
نیک او بد به ځبله بیل شی بې اشکالَ
دَ نسب دَ قبیلې پرسش به نه وِی
هر سړَی به پوښتیده شيِ له اعمالَ
چه عمل ئې د نیکۍ وِی خوښ به اوسی
دَ بدکار خلاصی به نه وِی له نکالَ
عارفانُو ځکه هسی ورته شا کړه
چه هوس دَ دنیا ندِی بې وبالَ
له هغې ښادۍ چه ژر له سړِی درومی
په سل زر بخری غم ښه دَی ځما لالَ
دَ دنیا مینه په زړه کښې لوی جنجال دَی
خلاص کړ ځان عبدالقادر له دې جنجالَ

پە گلونو آواز ورو کوَه بلبلَا! پریشانیږِی ستا له شوره له غلغلَ
عقل هوښ عزیز تر هر څه ښندل نشی[1] ته یو څه رنگه ډیر گران یې دَ مل ملَ[2]
خدای دِ نکا چیری څرخ به دِ په پښنو شِی قدم ورو ږده دَ رابیلو په گل گلَ
وَ مطرب ته مینا وایِی وایه وایه دا معنی ئې پیدا کیږِی له قل قلَ
صدقه ئې هم تر پَل عبدالقادر شه
څه قدرت لَرِی چه وایِی له دلدلَ

دریغه دریغه یَو ځل ولیدلَی یار خپل چه ښکاره می کړی وده وته اسرار خپل
نشته څوک چه دلاسې کا دَ غمجنو څوک به څه و بل یَوه ته وائی زار خپل
سرې سرې اوُښی می له مخه په لمنَ ځِی دَ یار غمه راشه گوره لاله زار خپل
چه پرې غم غلطَوم درې می محرم دِی یَو قلم، دوهم کتاب، دریم اشعار خپل
له خزانه به څه ویره څه به ډار کا چا چه توی کړ دَ خزان پخوا بهار خپل
په هر لوری چه می بیایی پسی درومم ما په لاس دَ عشق ورکړِی دَی مهار خپل
که څوک نوم دَ لباسی ږدِی په ما ښائی چه می وران نکړ په یار پسی روزگار خپل
څو دِ زړه هونبره ستم جور و جفا کړه ما بخښلَی دَی و تا وته آزار خپل
له غلیمه دِ نه غم نه دِ وسواس کا هر چه وسپاری و خدای ته کاروبار خپل
مستعد دَ نظر ته نه یې غافله! دلبر کله دریغ کَوِی له چا دیدار خپل
کل اندوه به پسی شا عبدالقادر کا
مخامخ که ورته ودَری نگار خپل

په دنیا کښ کمال نشته بې زوالَ دَ زوال اندوه کوَه صاحب کمالَ[3]
د هجران له غمه تریخ لکه بیلتون وُ[4] ما هرگز لذت بیا نه موند له وصالَ
نمر له تا نه منور شو دا له نمره څوک به میاشت کا ستا له مخه سَره سیالَ
ستا په تلَلوُ می اروا درومی له تنه یَو زمان را ځنی مځه دَ یار خیالَ
چه په هجر ئې ږُوند نشوم په وصال کښ یار ته غټ نه شم کتَی، له انفعالَ
هغه چا چه یښَی دا غ ځما په زړه وُ هم هغه ورباندِی کښیښنو له دسمالَ
که گذر ځما دَ یار په کوڅه وکړې دا پیغام پرې باندِی وَوایه شمالَ
زه که یَو ساعت بې تا نه یم بې غمه تا دِ خدای همیشه خوښ لرِی خوشحالَ

---

١. عقل هوښ عزیز هر څه پر ښندل نشی.
٢. دَ تل ملَ.
٣. جمالَ.
٤. دَ هجران له غمه تریخ راته وصال شوُ.

ډېر مَيَن په ډېر ارمان په وبا بېل شوه　　خدای دِ را موله بيا دَ غواص[1] کالَ
تر هر حرف ئې بوی دَ مښکو دَ عنبر ځي
چه ثنا عبدالقادر کا ستا له خالَ

تر نباتو لا خواږه دِي ستا ترخه وَيل　　ډېر دَ پير تر دعا به دِي ستا دَ خولې ښيرې ښکنځَل
دَ واعظ په نصيحت مې مينه لا په يار زياتيږي　　سرې لمبې دِي نه ډيوه دَه، چه به مړيږي په پوکل
گوره اوس به ئې تر درنگه دَ عاشق په وينُو سره کا　　په دا څه شو که ئې نن دَ خيال نمريه واغوستَل
کله گل دَی دَ رابيلُو چه دا هسی رنگ ځليږي　　وايي وچولی ښکاريږي تر پريشان پريشان وربل
په لَمن کښ ئې گلوُنه دَ بهار له سيله راوړه　　په تارُونو ئې ځما دَ زړه هارُونه وپييل
نه يوائې ځما راز اوُښو يا رنگ دَ مخ رسوا کړ　　آه مې لا دَ زړه رازُونه وَ عالم ته ښکارَول
په زيری کښ به ئې سر عبدالقادر ورته پيښکښ کا
که څوک هسی زيری راوړی چه نن يار درته لوړَل

ښه شول چه ښه نشول هر چه بد دی له ازلَ[2]　　بد به ستا و بدو ته بد وايي لم يزلَ!
هر چه په نسبت ځما و ما وته ترخه دِي　　بل وته هغه ترخه خواږه دِي تر عسلَ
کفر که ايمان دَی و عارف وته يکسان دی　　واروه که پوهيږې دا وينا ځما مجملَ
ستا فعل هر گز ندَی خالی له حکمتونُو　　ته هغه حکيم يې چه دِ کار دَی بې خللَ
واړه موجودات ستا په هستی باندِي دليل دی　　هم دِ په توحيد باندِي تر ما شی تر جملَ
هر څه ته چه گورې ستا جمال به پکښ وينی　　تا ئې چه په زړه دَ معرفت ډيوه کړه بلَ
هر څه ته نيژدې يې په قدرت تر هر څه خيره　　ذات او په صفات کښ له همه خيرونو بيلَ
تا ته رسيدل د تا په فضل و عنايت دی　　کله رسيدلی دِي څوک تا وته په ځلَ
کله سيلاب اَوړی دَ خځلو په بندوُنو　　ستا تقدير درياب ځما تدبير لکه خځلَ
هر چه په آخر له هغه کاره پښيمانيږې
مکړه هغه کار عبدالقادره له اولَ

چه دا هسی ځي له باغه په شتاب گل　　په بستر دَ راحت ځکه نکا خواب گل
دَ نسيم له تيزگامیِ معلوميږي　　چه به ږدِی قدم دَ تلَلوُ په رکاب گل
چه زلفين په عذارُو خم په خم کا　　تر هر خم لاندِی ئې راشِی دَ آفتاب گل
پسی شا ئې لړ و ډير دَ خوبیِ لاف وُ　　روبرو کړ ستا رخسارُو لا جواب گل
چه ښکاره ورته سپين مخ لکه خورشيد کا　　هغه دم ورته پيښکښ کا دَ مخ آب گل

1. ۱۰۹۷هـ
2. دا بدله له يوه نسخې څخه را نقل شوه په بله کښ نشته.

نورُو پټ دَ سينې داغ لاله ښکاره کړ — که نه کوم د دې باغ ندی دلکباب گل
گنُدِي عطر ئې کا ښکلی په ځان پوری — هم پدا امید ځان وسو د گلاب گل
دَ ريژون ويره کوَه عبدالقادره
ورځ په ورځ پژمرده کيږی دَ شباب گل

## (م)

که غموُنه د دې خپل زړگی ښکاره کړم — لوی هلک به همه واړه په ناره کړم
دا ځل هسی هجران ندِی پما کړِی — چه به نوری آشنايئِ دوباره کړم
دَ حسرت دَ اور بَخَرِی را ښکاريږی — چه دَ شاه دَ تاج دَ لالو ننداره کړم
که پاره پاره ځما دَ زړه په شان دِی — تسلې دَ زړه په گل دَ هزاره کړم
که وصال موموم دَ يار په بې ننگی کښ — نام و ننگ به همه واړه آواره کړم
که صبا دَ يار له چمه نگهت راوړی — گريبان به لکه گل هسی پاره کړم
ساز ناساز دَ عالم اَروم غوږ کاڼه کړم
محبت عبدالقادره بيچاره کړم

چه څوک بد را سره کا ورسَره ښه يَم — هم پدا دَ ښو دَ بدُو تور ليمه يم
له هغو می څه اندوه چه په خوی اور دی — پخپل خوی کښ سوړ او نرم تر اوُبه يم
چه و ما ته ځما عيب پيبنکښ راوړی — د دې هسی يار له خدايه په غوښته يم
فريبنتې دِ غم ځما دَ عصيان نکا — که مفسد يم که ظالم يم بيا دَ ده يم
نوُر ځما دَی، نار ځما دَ نورُو څه دی — دَ پتنگو غُندِی خير دَ ځان په سوه يم
په ايرو ئې مخ سپيره شِی چه نفاق کا — آئينه غُندِی مخ سپينه تور په زړه يم
چيری نه وِی چه به بل مخ وته گوری — په هجران کښ خوښ دَ سترگو په واته يم
له نور چا کله گِله عبدالقادر کړم
زه خوار کړَی خپلُو سترگو يم خپل زړه يَم

در پسې می خيژِی دم — له ما مه درومه يَو دم
زه مرده ته می عيسٰی يې — ژوندی کيږَم ستا په دم
دَ هجران غمونو خوښ کړم — تر وجوده په عدم
چه دارُو هرگز نشِی — بد زحمت دَی دَ ندم
ښه آدم تر فريښتو به دَی — تردد بد دَی بد آدم
دَ بيدارُو په نصيب شو — ښه دولت دَ صبحدم

خاوري شه عبدالقادره!
که پرې کښېږدې يار قدم

که هر څو دَ بيلتانه له غمه وايم
خپل ژوندُون مي دروغجن ندِي چي پايم
په قد کوږ په تن ضعيف گوښه نيولې
په مثال لکه ابرو دَ دلربا يم
لوی هلک مي واړه يو ځبله ښَينه
ستا په مينه لکه مياشت انگشت نما يم
دَ پله خاوری مي په قدر تر عنبر دِي
هم پدا چه ستا دَ تَلُو خاکِ پايم
چه حريف دَ خوشحاليه بې وفا دَی
له اندوه سره دايم رفيق پدا يم
دَ خوښيَ نامحرم دِ نه را دروِمي
نن شپه زه دَ يار له غمه خواپخوا يم
چه ئې واخيسته پرده دَ گل له مخه
منت بار دَ احسانونُو دَ صبا يم
توری سترگی توری زلفی ئې بلا دِي
اخته کړَی زه هم تا په دا بلا يم
هيڅ تشبيه تمثيل ئې نشته په جهان کښ
نه پوهيږم چه يار څرنگه وستا يم
ستا په حسن سوگند خورم پخپله مينه
چه تر ځان عبدالقادر مَيَن په تا يم

يار مي تله دَ باغ په لور کاندِي پوهيږم
گل به حسن ځنی پور کاندِي پوهيږم
دَ صبا اثر ئې شته دَی په قدم کښ
نغښتی گل به دَ باغ خپور کاندِي پوهيږم
چه په دا حسن جمال له کوره وَوزِي
ډير به وران ور پسی کور کاندِي پوهيږم
چه تور مخی رقيبان تر مخ شا گرزِي
دَ يار زړه به له ما تور کاندی پوهيږم
چه رقيب ئې مخ ته گوری زه هم گورم
دا کتَل مي به شوکور کاندی پوهيږم
هر چه غوږ وِی دَ دنيا په شيرازيُو
زمانه به هغه سپور کاندی پوهيږم
کله زړه عبدالقادر په رضا ورکړ:
ښايسته په زړُونو زور کاندِي پوهيږم

کله زه له بيگانه عالمه زار کړم
زه هم خپل آشنا له خپله لاسه خوار کړم
دَ هر چا خبری وړم دَ ده له مخه
په عالم کښ ئې بې قدره بې وقار کړم
چه په څنبل دَ خپلُو وينو سرخ رو گرزم[1]
څه منت به دَ دونانو دَ دنيا کړم
چه په وازه خوله مونده شِي مه ئې وينم
که صدف غُندِي حاصل در شهوار کړم
که ښاديَ دَ جهان واړه ځما شِي
زه به واړه دَ خپل يار له غمه ځار کړم
خار بندی مي دَ ښو کړه ترې چاپيره
گنُدِي خيال دَ يار په سترگو کښ حصار کړم

---

۱. کيږم.

چه ئې رنگ په لږ ډېر گرم بادنو لیړی[1] څه امید به دَ ژوندُون په نوبهار کړم
دَ پیوند گله دِ هیڅوک له ما نکا محبت له خپله ځانه هم ویزار کړم
چه بې تل عبدالقادر په ورکښ پروت دَی
عاقبت به ئې مَیَنو سره شمار کړم

چه می شا کړه و ښادَیُو ته ښاد شوم چه دَ زړه مراد می پیښ په مراد شوم
اوس څه غم نه کړم له غمه بې غم گرزم راضی من چه دَ ازل دَ ویش په داد شوم
چه می طمعه دَ دنیا ور ځنی پریکړه هغه کس که کیکاوس زه کیقباد شوم
ځان بازید بولی کارُونه دَ یزید کا که شیخانُو ځکه زه بې اعتقاد شوم
خدای می بیا پکښ بندی مکړه تر مرگه احتیاج عظیم زندان وُ ترې آزاد شوم
هم ئې ځان له غمه خلاص کړ هم نیکنام شو ډېر مَیَن په وروستنی ضرب دَ فرهاد شوم
باد ئې بوی عبدالقادره سحر راوړ
شگفته لکه غنچه په دغه باد شوم

مخ دِ لکه نمر دَی درته ځیر کتَلی نشم ځکه ئې دَ مدح تر عهده وتَلی نشم
زړه می ئې غلبیل کړ دَ هجران په ناوکیو راز پکښ دَ یار دَ محبت ساتلَی نشم
اوس می په معنو کښ ښه مَیَن دَ سترگو کسی کسی به دَ خلقُو په وَیَل ایستلی نشم
زه ئې دَ زنخ په څاه کښ بند لکه یوسف کړم بې ئې دَ زلفینُو په رسَئ ختلَی نشم
بند ئې دَ حواس په پنجره زه عبدالقاد کړم
زړه می پرواز غواړَی ولی اَلوتَلی نشم

له دې وړُوسته به و کل هوس ته شا کړم خو یکلخته به غمؤنه دَ اشنا کړم
پخپل یار پسی به زه شم لیونیه دَ دنیا ودانه خونه به تالا کړم
چه په مرگ سَره له چا نه جدا کیږِی په ژوندُون به ئې له ځانه زه جدا کړم
نه به مخ په آئینه بیا برابر کړم نه به تور اوربل په بږمنځ سَرَه صفا کړم
نه به څنې په فلیل سَره کړم غوړی نه به نوره خوشبوئی په ځان لگیا کړم
نه به سترگی په رانجه کړم نه به پان خورم نه به مُهر آویزاند په اوربل بیا کړم
شرمنده به په ماتم کښ بنفشه کړم په ماتم کښ به نه دې غنُدِی خندا کړم
راته وایه دا بیان عبدالقادره
چه دَ خوږ خاطر دمه په وَیل ستا کړم

---

۱. توریږی.

پہ هر څه کښ نندارہ دَ هغه مخ کړم          ځکه نور عالم غمؤنه کا زه سخ کړم
له اندوهه می لړمون شو ډک پہ وینو          دَ بلغم پہ ځای می وینی ځي چه اَخ کړم
نفس شیطان لیونی سپی را پسې شوی          مگر ستا توفیق رفیق شِی چه ئې چخ کړم
خو تاوده دَ محبت لَرم پہ زړه کښ          نور له واړُو غیرُو چارو سوړ سمخ[1] کړم
پہ دا راز عبدالقادره څوک پوهیږی
چه ښکنځل درته کوَم در باندِی مخ کړم

محبت چه دَ مجنون پہ نامه یاد کړم          له غه پسه ئې دَ یار پہ وصل ښاد کړم
خاص بنده خطاب ئې هاله و ما راکړ          چه دَ دوو کَونو له بندَ ئې آزاد کړم
آئینه له بد گوهره کانِی نشِی          بیهوده و تیره دلُو ته ارشاد کړم
چه می وکړه پہ مثقال پہ خروار اخلِی          زه به څرنگ خوشحالی پہ هسی داد کړم
دَ گندېیر له ونی کله څوک خواږه خوری          دَ وفا امید به څه له بدنهاد کړم
کنُدی بَخت می دَ دلبر دَ زلفو ږمنځ کا          که فلک ټوکرې ټوکرې لکه شمشاد کړم
تا خوږ کړَی یم هم ته می به دارُو کړې          بې لتا نه و نور چا وته فریاد کړم
چه سهار سهار راځِی دَ یار له لوریه          دَ غمجن خاطر دمه پہ هغه باد کړم
خپل مراد می دَ مراد تر منځ حجاب شُو
نور به ترک عبدالقادره خپل مراد کړم

زه دِ تل وینم دَ خوږ خاطر مرهَم          بې تا یَو زمان خلاص نه یم له المَ
پہ راتله دِ لکه گل شگفته کیږم          بړبړ رایشه آشنا صبا قدمَ
دَ عیسٰی پہ دم به مړ سړی ژوندَی شو          مړ زړه بیا مومی ژوندون د تا له دمَ
دَ مهجور تر زندگیه مرگ بهتر دی          که ستی ستیه کیږِی نده گرمَ
لکه وار دَ ښادیَ ځِی دَ غم هم درومی          پہ محنت کښ زړه هرگز مشه درهمَ
دَ یار غم پہ معنی غم ندی ښادی دَه          ما دِ نکاندِی خدای خلاص دَ یار له غمَ
دَ دنیا دولت پہ مثل لکه باد دی          کله مَخ کا کَله څټ کاندی له همَ
نه خوښی کړم دَ احمق سړی له مدحِ          نه می زړه مومی اندوه دَ ده له ذمَ
دَ زلفینو تر حلقو دِ عذار وینم          که نسرین دِ دَی پہ زلفو کښ صنمَ
مکړه خدای عبدالقادر چه پہ پیغور به
دَ زړه مینه کا له خپله یار کمَ

چه نیولَی ئې دَ مینی پہ تاوان یم          ځکه هسی رنگ بهتر تر درست جهان یم

---

١.   سوړ سمخ یعنی بلکل یخ.

عاقبت به دَ یوسف غُندِی عزیز شم
چه بندِی دَ یار په څاه د زنخدان یم

دَ خپل یار سرو سامان واړه ځما دی
غم ئې کوم دَی که بې سرو بې سامان یم

چه پرتو ئې دَ ښه مخ را باندِی وشو
لکه لعل قیمتی دَ بدخشان یم

دَ حریرُو په کاغذ دَ سرخئ میم دَی
که ئې خوله دَه و تحقیق ته ئې حیران یم

ستا له لاسه کل داغُونه راته بس دِی
مستغنی له تماشې دَ گلستان یم

خدای می خپل بانه دَ دوو سترگو نشتر کړ
که بې تا دَ بل و مخ ته نگران یم

که دَ مځکی غُندِی کوز په تواضع یم
په همت تر واړُو پاس لکه اسمان یم

دَ عوامو تر نظر لکه گدا شوم
و خاصانُو وته شاه دَ کُن فکان یم

نا آشنا دَ نا آشنا په قدر څه زده
که و نور خلقو ته سپک و یار ته گران یم

ناپوهی تر هوښیارئ راته ښه شوه
نه پوهیږم چه هوښیار یم که نادان یم

یَم وَیَل په طریقت کښ کافری ده
دَ یَم یَم په قافیه راوړل پښیمان یم

دَ سخن خوبی همه لرَم موجوده
زه عبدالقادر محتاج دَ سخندان یم

دا گمان له دله وباسه همدمَ
چه بې تا به سترگی وچی کړم له نمَ

په ژړا ژړا می لؤند دَ سر بالښت شی
چه می اُوښکی موج وهی دَ زړه له یَمَ

پدا حال می که گذر په چمن وشی
مستغنی به کړم گلؤونه له شبنمَ

که په ورځو زیست روزگار کوَم له خلقه
درسته شپه می سرکار دَی ستا له غمَ

چه ښکاره په درست[1] وگړی کښ ځان سوځی
راښکاره شوه دَ ستئ اندیښنه کمَ

رگ او پلې می خالی ندی ستا له درده
دَ پرهار غنُدِی خندا کړم له عالمَ

لکه کانړی هر ذره له اوره ډک دی
هسی سر تر پایه ډک یم له المَ

لا یَو داغ می په زړه روغ نه وِی بل کښیږدی
آه فریاد دَ جدایئ له ستمَ

خلاص به نشې په ژوندُون عبدالقادره
اندیښنه ئې شوه دَ تا له عمره سمَ

چه مَیَن په پری وشمه جانانه یم
ځکه سر لکه مجنون په ویرانه یم

نه خپلوی له چا کوَم نه می څوک خپل دی
په عالم کښ له عالمه بیگانه یم

ظاهر بین ئې په ظاهر صورت غلط شو
په باطن په خاورُو پټه خزانه یم

ځای می پاسه دَ بادشاه دَ سر په تاج دی
پریوتلی په ډیران دَ دُر دانه یم

دَ دې بزم دَ مجلس تاوده په ما ده
هم ساقی یم هم شراب هم پیمانه یم

په سینه دَ خپل مقصود په لور ښوریږم
په مثال دَ وزر سوِی پروانه یم

---

۱. په ډیر.

خرابات دِ خدای وادان لرِی تر ډیره    په وَیَل دَ ده له فیضه رندانه یم
بې نائی کله آواز خپریږی له نیه    واړه عشق ئې وَیَوِی زې بهانه یم[1]
په ژوندُون عبدالقادره کور ویران کا
ډیر پدا خصلت مَیَن دَ دیوانه یم

چه تل هسی په هوس په بې غمی یم    اقرار شوَی دَ خپل عقل په کمی یم
سړیتوب که په سیرت وُ لما لاړ شو    آدمیت که په صورت دَی آدمی یم
که په فضل ئې کار وسپاری غم نشته    که په عدل مې سپاری جهنمی یم
دَ هجران په لمبو سوَی یم فریاد کړم    ما معذور لرَی عالمه اَلمی یم
اهرمن چه لاس ور وړی گوتی ئې سوځی    بادشاه شوی زه دَ فقر په غمی یم
دَ معنو په ملک پارسی عربی نشته    کوم نقصان که عرب نه یم عجمی یم
کله زه عبدالقادر دَ شعر لاف کړم
مرثئې دَ تللَیو وایم ماتمی یم

محبت څما بادشاه زه ئې غلام یَم    سر فراز ئې په خدمت سهار ماښام یم
په یوه کاته ئې سل شرفه مومم    ځکه هسی تر هر چا بلند مقام یم
چه په بوی ئې دَ مستیِ چرخ څرخیږی    امیدوار لتا ساقی دَ هغه جام یم
یَوه ورځ می به په حال ترحم وشی    په امید دَ صافو میُو دُرد آشام یم
پریښووَل دَ خپل خواهش کمال دَ عشق دی    رضامن دَ عاشقیَ په کام ناکام یم
اُوم کباب دَ اور په تاو ژړا فریاد کا    که دَ عشق له اوره آه وکړم لا خام یم
چه شفیع می دَ گناه خیرالانام دی    غم می نشته که هر څو شرالانام یم
هر غزل می مبرا دَی له تکلیفه    په ساده پښتو وَیَل شیرین کلام یم
دورغجن ورته خپل ځان نیولَی نشِی
به رشتیا عبدالقادر تیره صمصام یم

په خاطر کښی هونبره درد لَرم که آه کړم    اور په پوری په خرمن دَ مهر و ماه کړم
عشق خلعت دَ غلامیَ دَ شاهیَ راکړ    له اوله ئې مرئی آخر ئې شاه کړم
دَ مخ نور ئې لکه نمر دَ مخ حجاب شو    کښلی مخ ته ئې نظر په کوُم نگاه کړم
هیڅ عجب په باد کښیښول دَ جهان ندی    چه نظر پخپل وجود پخپله ساه کړم
هدایت به څما څرنگه څوک کاندیِ؟
چه په سَمَه لار کښ خپل دلیل گمراه کړم

۱. واړه عشق می وَیَوی زه بهانه یم.

تا چه زلفی په سپین مخ کړې خم په خم   په خاطر باندِې می بیاږدې غم به غم
عاقبت عاشق معشوق، معشوق عاشق شِی   ښه چه زه او ته په عشق شوُو سم به سم
په معنی کښ سخاوت ندَی امساک دی   هر چه ورکړه ډیر په ډیر کا کم په کم
لکه حسن دَ دلبری روز افزون دی   هسی عشق ځما زیاتیږِی دم په دم[1]
که دِ زړه دَی چه دَ زړه غنچه دِ وا شی   اورَوه له دواړُو سترگو نم په نم
په هر ځای باندِې چه کښینم لاله زار شِی   چه می ډیر په سترگو دروِمی دم په دم
ځما دم دَ یار له دمه وابسته دَی   چا وې دا چه تاړه نشِی دم په دم
هم په ویر هم په سرود عبدالقادره
کور په کور دَ عشق نارې دِی چم په چم

چه منظور دَ یار صفا جبین لَرم   زړه پدا له نیک او بده سپین لَرم
کام ناکام ځما په طبعه برابر شو   په ترخو سَره تل کام شیرین لَرم
دَ حسد له خویه هسی رنگه خلاص یم   عار راځی چه له شیطانه کین لَرم
په ویل وچولی غم یوسم له غمجنو   له هر څو ننه خاطر حزین لَرم
په ظاهر و ظاهر بین وته مقهم یم   په باطن براق دَ تللیو زین لَرم
دُر ریزی کړم په صفت دَ یار دَ لعلو   کلام څکه هسی رنگ رنگین لَرم
نسترین دَ باغ ځما په سترگو خار دی   چه په کور دَ یار دَ مخ نسترین لَرم
په خیال خیال په شیوه ځِی په سترگو مشه   تل پدا دعا آمین آمین لَرم
که په بخت عبدالقادر نازیږم ښائی
که دَ تا غُندِی نیازمن نازنین لَرم

چه له حاله دَ وگړی خبردار شوم   له همه وُ په زړه بیارته په ډار شوم
ورځ په ورځ می له جهانه زړه سړیږی   په دریاب کښ له دریابه په کنار شوم
چه پخوا عمر به ما پرې افتخار کړ   په هغو واړُو کارونو شرمسار شوم
ځان می خلاص کړ دَ دلبرُو له نازونو   بس کړه ډیر ئې دَ نازونُو خریدار شوم
په تندی ئې لاس څکوم له شفقته   اوس می کښلی لکه زوی زه لکه پلار شوم
معنوی ښایسته غواړم که ئې موم   صورتی دَ زړه زحمت وُ ترې ویزار شوم
چه بې غمه نشته څوک عبدالقادره
ښه چه زه په غم دَ مینی گرفتار شوم

---

۱. دلته دم په دم یعنی گړی په گړی، په ورُوستَنِی بیت کښ دم عربی دَی یعنی وینی تر هغه ورُوستنی بیت کښ دم په معنی دَ ساه دَی چه مطلب ئې ژوندُون دَی.

عجب خوښ په خوب اوده وم دَ عدم     نه می غم وُ دَ خوښیِ نه دَ غم
یا وحوش وَی یا طیور یا بل اشیا وَی     کشکه زه نه وَی پیدا بنی آدم
یا می مرگ په هلکوالی وَی چه خلاص وی     ومی نه لیدَی دا هونبره ډیر الم
نه اول شوم نه دوهم شوم نه دریم شوم     څلورم بویه دَ حق فضل و کرم
چه مخلوق ئې کړ آدم له ما وطنه     روح ئې کړ له خپله روحه پکښ دم
له اوله ئې مسجود دَ فریښتو کړ     په تکریم دَ ''کَرَّمنَا'' شو مکرم
و جنت ته ئې روان په ډیر اعزاز کړ     پر پریوان ئې کړ انواع انواع نعم
بیا شیطان ئې وسوَسه وَروسته زړه ته     په وَیَل ئې دَ غلیم وَخوړ غنم
دَ جنت جامې ئې والوتې له تَنه     بې لباسه شو برمنډ په هغه دم
له جنته ئې بیرون په درد او دوک کړ     دَ ''عصىٰ آدم'' ندا شوه په عالم
ده دَ زړه له سوزه دا ناره وَهَله     هم ئې دا ناره دَ زخم شوه مرهم
چه نسبت ئې کړم وتا وته ویریږَم     خو هم ما وکړ په ځان باندِی ستم

هیڅ حجت له خپل باداره سَرَه نشِی
گرم ئې ته عبدالقدادره یار ناگرم

نه پوهیږم چه دا ویښ یم که خواب وینم     چه دا هسی رنگ کاروَنه حجاب وینم
پلار و زوی وته خبری په نرمی کا     زوی و پلار وته په قهر و عتاب وینم
په امید دَ مال و ملک چه میراث شی     دَ مور پلار له مرگه زوی کامیاب وینم
چه مقصود ئې تر منځ ووزی غلیمان شی     محبت پخپل مقصود دَ احباب وینم
واژگونه چاری په دهر کښ لیدَل شِی     محتسب کره ښیښه دَ شراب وینم
په ښی لاس پیاله دَ میو مَی نوشی کا     په کیڼ لاس کښ ئې دَ فقه کتاب وینم
که قاضی دَی، که مفتی دَی که خطیب دی     دَ همه وُ کره چنگ و رباب وینم
تولا تبراء طمع ځنی یووړه     عالمان دَ کافرانو به باب وینم
که پخوا فضل په علم او په تقوا وُ     اوس ئې فضل دَ دنیا په اسباب وینم
دَ دوزخ په لور که تله په معصیت شی     تر کافر دَ مسلم تله په شتاب وینم
خوږې صافی اُوبه نه څښی په کور کښ     تشنگان روان په لور دَ شراب وینم
که پخوا حاکم شبان خلق رمه وه     په دا دَور ئې لیوه یا قصاب وینم
لور په لور ئې کړې دَ ظلم لمبې بلی     پکښ زړونه دَ مظلومو کباب وینم
هیڅ ئې نزده چه انجام به ئې په څه شِی؟     په بدیو کښ دَ خلقو جواب وینم
شکر شکر چه لا وَر دَ توبې وا دَی     دَ مشرق په لور خَتل دَ آفتاب وینم

سامعان ئې آمنّا و صدّقنا کا
ستا گفتار عبدالقادره صواب وینم

څه شو که ظاهر لب خندان لرم زړه دَ جدايۍ په اور بريان لرم
تود لوگی دَ خولې اُوښی دَ سترگو سرې دواړه پدا حال باندې گواهان لرم
سيم و زر می زړه او مخ غنی يم پرې لعل او دُر دَ يار لب و دندان لرم
زړه می دَ دلبری دَ جانان دَی ځان زه خود له جهانه زړه اوځان لرم
لږ قهر چه وکړې هم اُوبه شم ترې کله زه ناتوان دَ قهر توان لرم
څو پکښې پراته دِی دَ يوسف غُندی ډک له کښلیو څاه دَ زخندان لرم
هونبره پرتې ندی چه ئې وشمارم ستا گلې په زړه چندان چندان لرم
کيست که اين حلقه بدر ميزند؟
خوار خټک يم سر پدا آستان لرم

شکر شکر چه نه خان يم نه امير يم نه بادشاه دَ ولايت نه ئې وزير يم
نه قاضی يم نه مفتی نه محتسب يم چه بډيو رشوتونُو ته دوگير يم
نه مشرف نه کروری[۱] نه فوجدار يم نه عمال دَ چا دَ ملک نه دَ جاگير يم
نه دعوه دَ ملايۍ نه دَ شيخۍ کړم نه دعوا کړم چه صوفی صافی ضمير يم
نه بنگی نه شرابی نه قمار باز يم نه ټگی کړم نه رهزن نه غل کاسير يم
تونگری دَ زړه لرم دنيا می نشته سر سايه زکوة می نه وزی فقير يم
قلندر يم په ساده سپينه جامه کښې نه په فکر دَ درم او د نانير يم
په ظاهر خندا هوس کوَم له خلقه په باطن کښې گرفتار دَ ځان په وير يم
قناعت صبر هر ځای راته گلزار کا گويا ناست لا په کابل لا په کشمير يم
يَو ليدَل دَ کښليو کړم ښه آواز اَورم خدای می وبخښه اقرار پخپل تقصير يم
که کرم را باندِی کا جنت می ځای دی که حساب را سره کا اهل سعير يم
خوشحالی می په ديدن دَ کښليو کيږی چه ئې نه وينم يَو دم پسی زهير يم
په آواز می ئې د زَړه پرهار گانډه شی مَيَن ځکه دَ رباب په بم او ځير يم
په هر ځای چه قدم يښَی ښايسته وِی مينه دار په هغو خاورُو تر عبير يم
خدای می روغ عبدالقادره ځنی مکړه
چه زخمی دَ خپل مَيَن دَ عشق په تير يم

مهر ځما دَ خپل صنم مشه ځما له عمره کم مشه ځما له عمره کم، مهر ځما دَ خپل صنم
غواړه گرزه عرب عجم، نشته ځما دَ يار ښبان نشته ځما دَ يار ښبان، غواړه گرزه عرب عجم
واړه په ما دَ يار ستم، شهد وشکر نبات لگی شهد و شکر بنات لگی، واړه په ما دَ يار ستم
زلفی په مخ کړه خم په خم، کښينه و ما ته مخ په مخ کښينه و ما ته مخ په مخ، زلفی په مخ کړه خم په خم

۱. کرو په پښتو دَ مځکی دَ پیمایش اندازه دَه، دا کلمه به له دغه اصله جوړه شوې وِی.

عمر گذر کا دم په دم، لویه ولجه[1] دی دا زمان    لویه ولجه دَی دا زمان، عمر گذر کا دم په دم
وکړه په خوار ختک کرم، شمار ئې په کشتگانُو کړه
شمار ئې په کشتگانو کړه، وکړه په خوار ختک کرم

## (ن)

پرې می بِدَی چه ژاړم شپه او ورځ لکه باران    گل غنُدِی ریژون کا په وار وار کنبلی یاران
ښه دی پوهیدلیِ چه آخر به خاوری کیږی    ځان په ژوندانه کا توری خاوری خاکساران
تا چه پخپل عمر شپه دَ درد لیدلې نده    ځکه دِ خندا شِی چه ذکر وکا افگاران
مرگ ئې رغیدن دی دَ دارو زیرمه ئې مکړه    خوښ په ناروغی دِی ستا دَ سترگو بیماران
وخت دَی که څه وکړې بیا به وایې وار به تیر وِی    تل به هسی نه وِی دَ عمر با غ ودان
کله پخپل ځان باندِی پیرځو د سَرِی بد وِی    څوک شوه له ازله نیکو کار، څوک بدکارن
هر چه یار ئې نه وِی پخپل کور لکه غریب وی    ناست په خپل وطن کښ مسافر وِی بې یاران
هیڅ ملامت ندَی که فریاد عبدالقادر کا
هراند ئې دِی په زړه دَ یار دَ زلفو تور ماران

هیڅ عاشق به ترې بیا نمُومی امان    عشق پیغور دَی سَره دواړه توامان
چه به ستا په نصیحت و یار ته شا کړم    له زړه لیری کړه ناصحه دا گمان
چه له کنبلیو له لیدنه ماړه نه شوو    هر چا وړَی دَی و گور ته دا ارمان
ښایسته دَ مځکی مخ دَی په خوبانو    که په ستوریو حسن زیات دَی دَ اسمان
نن ئې وې چه سبا راشه خوله به درکړم    مدد گار شې بخته! بیا مشه پښیمان
که به وځکوې لَمن ځما له لاسو    په قیامت ځما لاسُونه ستا دارمان
تیر وی تیر راتلونی نه وی[2] لا راغلی    عاقلانُو ته دنیا شوه د ارمان[3]
دَ سامان دَ سر انجام فکر ئې نه وی    نه سامان دَ بې سامانو دَی سامان
دَ یار درد عبدالقادره دَ هغو دَی
چه هر گز ئې فکر نه وِی دَ درمان

ښایسته چه په خندا کاندی دندان سپین    تویَوِی له سپینی خولې در و مرجان سپین

---

۱. دا کلمه کټ مټ ولیکله شوه.

۲. نوی.

۳. دا زمان.

تر سپین مخ پوری ئې تور لکه لونګ شِي — که هر څو رابیل چنبیل وِي دَ بستان سپین
که دَ زلفو په سیاهی جهان تیاره کا — په جبین لکه سبا کا بیا جهان سپین
په جمال به ئې دَ یار سترګی بینا شِي — که یعقوب غنُدی کا کسی په هجران سپین
سپین واله نشِي دَ زړه په سپینه بِدیره — په سپین والی به دَ نمریو نشی ځان سپین[1]
تور بورا دی په ګل ناست عبدالقادره!
که ئې ینبی دَی تور خال په زخندان سپین

شکر شکر بیا یَو ځای شول مَیَنان — رو سیاه شول پدا منځ کښ رقیبان
ساقی دریغ دَ پیالې نکاندی له چا نه — تر محروم شول خود بخود بې نصیبان
په منبر باندِی به سرې لمبې شِي بلی — که یَو راز دَ عشق بیان کا خطیبان
چه په رګ می ګوتی بِدِی ګوتی ئې سوځِي — ځما رنځ به څرنګ مومی طبیبان
نن باغوان دَ باغ ګلوُنه واړه تړول کړه — دَ زړه سود به په څه کا عندلیبان
لبیبان دَ دنیا واړه لیونِی دِی — لیونیو ته ښکارېږی لبیبان
دَ ژوندُون جهاز به غرق دَ فنا سیند کا — که په ځان ئې نوح نبی شی کشتئ وان
د دنیا په ودانی عبث منبود کړې — عمارت په سرای کښ نکا غریبان
دَ سوارئ زیرمه کوَه عبداقادره
په هر لوری ډنډورې کا نقیبان

نمر سپوږمئ، مزکه اسمان — ځان په ځان بځان حیران
اُوبه سر وَهی له کاڼیو — شپه او ورځ کاندی فغان
لړمون سوَی د آتش دَی — باد هم ګرزی سرګردان
چه نښان ئې مونده نشِي — څوک به مومی بې نښان[2]

نه پوهیږم مخ ئې ګل دَی یا لاله دَی یاسمن — یا حل شوی په یو ځای ګل دَ لاله دَی نسترن
دا ئې خوله ده که غنچه دَه که میم کښلَی په سرخی دی — دا ئې سترګی که نرګس دی که هوسئ دی دَ ختن
دا ئې زلفی که سنبل دی که ښامار په چندڼ څوړند — دا هلال دی که لیندئ ده که ابرو دَ سیمین تن
دا ئې شونډِی دی که لعل یا یاقوت دِی که مرجان دی — سیب دَی دا که ناشپاتی دی دَ بخت ستوری که ذقن
دا وینبته دی که ئې ملا دَه، که ځما دَ خاطر فکر — دا دَی قد که صنوبر که چنار سبر دَ چمن
دا شراب دِی په پیاله کښ که یا دِی دَ ځګر وینی — دا کباب په اور وریتیږی که وردرومی شی سوختن

---

۱. په سپین والی دَ نمریو به نشی ځان سپین، یعنی په سپین والی دَ کالو.

۲. مقطع نلَری.

دا نثار شِی دَ گوهرو که دَ مښکو دَ عنبرُو
که صفت عبدالقادر کا دَ خپل یار نازکبدن

## (و)

دنیا دار په سپیُو بولی یا په خرو
ته پرې ولی هونبره مینه کوې ترو
عاشقان دَ یار په مخ په شونډُو مست دی
مستغنی دِی دَ جهان له سپینو سرو
ځما یار په خوب اوُده دَی چه ویښ نشِی
په پیاله کښ ساقی مَی تویَوه ورو
عام عالم وته بې بال و پر ښکاریږی
لا مکان ته عاشق ځِی دَ عشق په پرو
توکل ځما په خدای نه په طاعت دَی
شیخه تازده، ستا طاعت زده ستا اسرو
په شامت دَ دیو سړیُو باران پریږده
شکر دا چه اور نه ووری له اورو
بې عمله به دِ ښه په چا و نه شِی
نه په ورُونو، په پلارونو، نه په ترو
چه دَ خدای په یاد مشغول سړی هغه دِی
دا غافل خلق حساب دِی په خرومرو

غره مشه دَ دولت په بام ختو
هر زمان ئې ویره کړه دَ پریوتو
ډیر ئې هسک کړه بیا ئې وَویشته په مزکه
هسکوَل دَ چرخ په نیت دِی دَ ویشتو
لا لمړی وزر پیدا دَ محبت کړه
که اسمان ته قصد لرې دَ الوتو
چه ئې مینه دَ ښه مخ په زړه کښ نه وِی
دَ هغو مخُونه ندِی دَ کتو
چه ړندې نشوې دَ یار په بیلتانه کښ
خوښ یم اوس دَ دواړُو سترګو په وتو
بډایی په قناعت شِی نه په زرُو
سپین واله بویه دَ زړه نه دَ وینبتو
خان[1] خوږه کړه تر پارسی عبدالقادره
که پخوا وه ترخه ژبه دَ پښتو

دا چمن به تل زیبا نه وِی په ګلو
نه به تل باندِی غوغا وِی دَ بلبلو
نه به تل سروی سرسبزه وی په باغ کښ
نه به تل چنار زر ویش کا په منګلو
نه به تل نارې سورې وِی دَ مستانو
نه به تل هسی په جوش وِی خم دَ مُلو
نه به تل عبدالقادر موشکافی کا
نه به تل جهان خوشبوی وِی په کاکلُو

---

۱. مطلب ئې خپل پلار خوشحال خان خټک دَی.

چا موندلَی دَی نارې وهی هُوهُو    ځوک طالب، ځنی پوښتنه کا کوکو؟
عرشیان ئې پرسش کا له فرشیانو    فرشیان پسی هم گرزِی په سوسو
دَ دویئ خبری مه کوَه مطربه!    په نغمه کښِ یَویَو وایه نه دو دو
چه راغلَی له عدمه دَی وجود ته    آواز یَو تر بل کَوِی چه به ځوځو
دَ ځوانئ شاهین یاغی شو را به نشِی
که فریاد عبدالقادر کاندِی قوقو

ستا شونډانُو بازار سوړ کړ دَ شکرو    هم دِ غاښو قیمت لَږ دَ مرغلرو
نه په زور په لاس کښیوزی نه په زرو    خدای دِ نکا ځوک مَیَن په زورَورو
دَ مار خواړی[1] په فریاد پوری خندا کا    ده لا درد لیدلَی ندَی د ښنبرو
ټولَول، کښیښهوَل دَ زرُو بنځی کاندی    وُرکوَل بازل ئې خوی خصلت دَ نرُو
چه ژوندُون ئې وابسته په سرو لمبو دی    عاشقان دِ په معنی دَ سمندرو
مخ ئې گنج دَی دواړه زلفی ئې مارُونه    سربازان به گنج آخلی دَ اژدرو
چه له یار سره واصل بډای هغه دَی
خدای شمار عبالقادر کړه دَ تونگرو

هم له بدو سَره ښه کړه هم له ښو    دَ ښو بدو له غمونو شه پځښو[2]
خاکساری لیری کَول دِی دَ خودئ    نه چه کیږِی خاکساری به خاورو مښو
په جهان چه زلزله دَ حوادث شته    تر قصرونو جونکړی ښې دِی دَ وښو
د خیمو میخونه وکاږه فراشه!    فریادونه درته کا جرس دَ لښو
مرگ له تندی په مذهب ځما بهتر دی    نه ژوندُون دَ دون همتو په اوبو[3]
خرخښې دِ سر له سره ژوندون را کا    زه قربان شم یاره ستا تر خرخښو
کشکی زه دِ دَ اُوږدو زلفویو تار وی    چه همیش می ینښَی سروی ستا په پښو
هسی راز توبَری می مات دَی په خاطر کښ    چه عاجز ئې طبیبان شول له وکښو
دَ خپل زړه په تخته کښه عبدالقادره
په کاغذ دَ عشق وَیل ندی دَ کښو

راته څه وایې چه وایه زړه دِ چا یو'    بې تا ځوک دِی ما لیدلِی وایه تا یو'؟
په ژړا ژړا می زړه له کښلیو خلاص وُ    په خندا خندا ئې نن را څخه بیا یو'

---

١. یعنی مار خوړلَی.
٢. دا کلمه حل غواړی.
٣. دَ دون همت په اوبو څښو.

چه دَ عشق جمال جلوه وکړه عالم ته
تر مقر ئې دَ منکر خاطر پخوا یو،

دلبرۍ ته به ښکاره درځم زاهده!
بیا به وایې چه ئې زړه ځما په غلا یو،

شیرین ځان شیرینی ځار تر خپل مَیَن کړ
پدا کار ئې گوی له کنبلیو دَ وفا یو،

له اجله ئې هورې خلاصی و نشه
ځان ادریس له مزکی پاس که په سما یو،

دَ باد وړېُو څوک پوښتنه کا چه څه شو
بیا په بخت په لاس کنبیوزی چه هوا یو،

چه دنیا ئې پخپل ځان باندی تنور کړه
و اسمان وته ئې ځکه مسیحا یو،

په بوسه مې ئې خاطر چیری ښه نه کړ
دا ارمان عبدالقادر لما پخوا یو،

مشه خوښ دَ بادشاهۍ په تخت ختلو
همیشه ئې غم کوَه دَ پریوتلو

هغه لیندی ورته ناست لینده څکولې
چه هاتی ئې سر و تیر ځی له ویشتلو

هر دنیار پردی به سکور دَ تا دَ ځان شی
دا چه اوس ئې خوښی کړې په اخستلو

چه می اوس کړې په مظلومو رډی رډی
غافل مشه دَ دیو سترگو دَ وتلو

چه پیشه ئې همیشه زهیروَل وِی
دَ هغو مخُونه ندی د کتلو

ځکه تل کړې په زردوزو جامو کبر
چه غافل یې دَ کفن له اغوستلو

دَ اجل دَ سپرو تاخت ناگهانی دی
چه هیڅ کور ئې نه خلاصیږی له نتلو

چه دَ باز وزر دِ جوړ وُ ښکار دِ نکړ
دَ کورپر نه وی قوت دَ الوتلو

هغه زړه عبدالقادره چه مرده وِی
په کوگل دنَنه ندَی دَ ساتلو

راشه گوره نندارہ دَ فاسقانو
دم وهی دَ خدای دَ خاصو عاشقانو

خپل کردار به شاهدی لِی په دروغو
که په خوله کاندِی وَیل دَ صادقانو

په کردار اهل شمال ورځنی عار کا
په گفتار کښ سبق کا تر سابقانو

دَ عصیان ناروغ رمق لَری په تن کښ
الغیاث دَ دیو رنځورو، حاذقانو![1]

چه گناه په خندا کا ژړا ئې نه وِی
دا خصلت دَی دَ همه منافقانو

په لیدو به دِ کله مشرف شِی
اشتیاق شو هرگور ډیر دَ شائقانو

مرگ ئې سل ځله بهتر له حاضرانو[2]
دَی بنده عبالقادر له آبقانو

تر قربان شه سل ښادیِ دَ ښادمنو
ربه مه وړه خپل عمونه له غمجنو

---

١. الغیاث دَ دوی دَ رنځو حاذقانو.

٢. له حاضرولو.

هر آشنا چه زړه را یاد کا ځما مرګ دی | زه فراق جګر پاره کړم دَ مېَنو
و بیدردُو ته دعا کړم که دردمن شِي | خدایه درد را ښکاره مکړه دَ دردمنو
په وار وار به باغ خالی شی له ګلونو | نن بلبلو دا آواز کاوه په ونو
بدان واړه دَ بدانو صحبت بد کړل | ډیر پمن دِی پمن شوِی له پمنو
ډیر ګرزونه وی سپاره ځني ښکاریږِی | دَ خواریِ نظر مکړه په ګرزمنو

و معنو ته فهم کړه عبدالقادره!
چه نظر کړې د جهان په اُوړو پلنو

باری شکر چه له هر څه نن فراغ یُو | مخامخ له یاره ناست په مخ اياغ یُو
که مو عمر دَ چمن تر ګلو کم دَی | دَ لاله غنُدِی سور مخ دَ زړه په داغ یُو
خزانه دَ قناعت راته حاصل ده | تر شاهانو لا په کبر په دماغ یُو
تعلق لکه نسیم ور پوری نکړو | نندارې لَره راغلی د دې باغ یُو
نن ځموږ جونګړِیِ دَ یار په مخ رُڼا ده | مستغنی له روښنايیِ دَ څراغ یُو

که ظاهر می خلق ګډ وینی له خلقه!
په باطن عبدالقادره سر په راغ یُو

## (هـ)

چه آخر ځنی شلَوه شسی په ارمان زړه | ځوک به څه لره تړی په دا جهان زړه
دَ دې باغ دَ ګلو بوی دَ وفا نه ځِی | نو ناحق بایلی پردویو بلبلان زړه
چه په خیال دَ یار دَ زلفو پریشان دی | جمعَ مشه تل می اوسه پریشان زړه
سخت بې رحمه بې پروا لکه چه ستا دی | په جهان کښ به بل نه وِی پدا شان زړه
په هر ځای چه ئې دلبره هم هورې وِی | په کوګل کښ ساتی کله بیدلان زړه
خدایه څه دِ په نادان کښلی مَیَن کړم | چه بې جرمه بدَوِی په هر زمان زړه
قرب او بعد، وصل هجر ورته یَو شِي | چه ئې بیا مونده مکان په لا مکان زړه
دَ دوزخ اور ئې په سل ځله قبول دَی | خدای می مکړه دَ بیلتون په اور بریان زړه

بنګ شراب سرود کوهَ عبدالقادره
خو یَو مکړه آزرده دَ مسلمان زړه

چه په کښلیو مبتلا شِي لکه زه | همیشه په واویلا شِي لکه زه
سر ګشته حیران پریشان ګونه بدرنګه | خوار خسته تر مجنون لا شی لکه زه
دَ هر چا ناسازی وړی په تور د مینی | خانمان به ئې تالا شی لکه زه
نه به آه نه به فریاد نه به ژړا کا | کل روزګار به ئې په غلا شِي لکه زه

محبت به ئې پرې نږدی و مانې ته　　بې ریباره به پخولا شِي لکه زه
لا به شی تر دا بتر عبدالقادره
چه اخته پدا بلا شی لکه زه

چا چه بایلو دَ دلبرو په وربل زړه　　پریشانی ئې کړه په بخره تل دَ خپل زړه
که یَو ځل دَ یار دَ زلفو په تار بند شِي　　خلاص ئې مکړه خدایه بند می لَره تل زړه
په جفا به دِ زړه بد شی که ئې وکړم　　تر خپل زړه پوری قیاس کوَه دَ بل زړه
په شړلُو بوراَ نه درومی له گلو　　ستا له مخه به ولاړ نشی په شړل زړه
چه صورت دَ ښو یارانو پرې لیده شِي　　په وجود کښې ځکه غوره کړه کتل زړه
که دولت دَي که حشمت په کار بې ندِی　　په جهان کښې خو ئې کبنلی و پسندل زړه
لکه باد دَ صبا نغښتې غوټۍ وا کا　　غوړیده شِي دَ دلبرو په لیدل زړه
ورته تیر عبدالقادر تر سرومال دَی
که خوښیږی دَ دلبُرو په نتل[1] زړه

ته ور درومه اوس خپل ځان لَره خپل کار کړه　　چه دِ زړه باندِی ښه کیږِی هغه یار کړه
موړ ماړه شوو ستا له نازه ستا له خیاله　　له دې ورُوسته بل پیدا دَ ناز خریدار کړه
په باطن لکه اغزَی په صورت گل وې　　دا سزا ځما چه مینه می پر خار کړه
چه خبر دِ په وار وار شوم له احواله　　منفعله دِ لولیه دَ بازار کړه
هیڅ په ژمنه په سوگند پروا دار نه وې　　په دروغ دروغ وَیلُو افتخار کړه
عاقبت به ئې پیالې دَ ندامت څښی　　آشنایی چه له نادان سره هوښیار کړه
بې اختیاره زړه دَ کبنلیوُ په لور درومی　　ما به مینه په تا کله اختیار کړه
که وفا غواړې یاری کړه له اصیله　　زړه چه مینه په بدذات کوې ځان خوار کړه
چه په طمع آشنایی کا یا له ویری　　دَ هغو له آشنایۍ ځان ویزار کړه
که په مخ دِی لکه گل چه بې وفا وِی
هغه یار عبدالقادره تر سپی ځار کړه

وینځه که اصیله وِی که توره وِی که سپینه　　کبنلې شِی له حورو چه پرې ورشِی دَ زړه مینه
شهد که نبات وی که څه شته شیرینۍ نوری　　مینه دَه که گورې چه تر هر څه ده شیرینه
خیال ئې د زلفینو لکه مار ور باندِی پروت دی　　نه پریږدِی وَ زړه ته بله مینه چه ورځینه
سل زخمه که وخوری ترې به یَو ځاځکی پرینوزی　　هسی رنگه وچه دَ صورت کا مینه وینه

---

۱. ختل.

خوب به ئې بدل په بیداری خوښی په ویر شی — هر چه ئې په زړه کښ دَ دلبرُو مینه وینه[1]
یار په هواد ندی که دَ زړه مینه پیدا کړې — مینه هسی څیز ده چه نیژدې لیری کوینه
څه عبدالقادره په خوله مینه مینه وایې
څو دِ لا اوجاړه نده مینه نه ده مینه[2]

چه له خپله آشنا نه لَری گِله — له نور چا نه به په څه لَری گله
خو عارف دَ چا په ښو شکر گذار دی — نه په بدو دَ دښنه لری گله
انگوری ترخه شراب ور لَره بویه — میخواران له گبینه لری گله
چه بې تا ئې غوړوَم وَبل و مخ[3] ته — پدا خوی له ما لیمه لری گله
هیڅ ایستاد ئې پکښ نه وکړ ترې پریووت — له ناوکه ئې می زړه لری گله
چه جارُو می ستا دَ وردَ خاورو نکړه — ډیر څما له ما باڼه لری گله
بد و بد وته ښکاریږی ښه و ښه ته — ښه له بدو، بد له ښه لَری گله
ښه که سروَ ترې قربان عبدالقادر کړ
بیا ترې ولی یار له ده لَری گله؟

جگی جگی آواره څما تقصیر کړه — عنایت مهر په ما په روی دَ پیر کړه
هر ستم څما قبول شړَل دِ نه وی — ما داخل دَ مَیَنانُو په زنځیر کړه
کوز غبار دَ مانړی لیری کړه له زړه نه — لکه وُ تر هغه زیات صفا ضمیر کړه
دَ غمزې په تیر دِ ډیر عالم پرهر کړ — موږ هم باری سرفراز په یَوَ تیر کړه
دا کوم مهر، کوم انصاف، کومه یاری ده — په وَیلو دَ غلیم مَیَن زهیر کړه
دَ وصال عمر دَ برق غُندِی ژر تیر شی — یار چه اوس درته حاضر دَی ښه ئې څیر کړه
یار وَیَل عبدالقدارد ته چه دلیر یم
ویې شکر خدای دِ لا تر دا دلیر کړه

چه ئې رنگ په رنگ دَ کښلیو دَ رخسار شه — په گلونو کښ گُلاب څکه آبدار شه
چه تشبیه ئې ستا له قده سَره وشوه — سر بلند په نورُو ونو کښ څینار شه
که طالع دَ عاشقانو توری نه وی — تور اوربل ئې په مخ ولی تار په تار شه
په عاشق به ئې همیش جور و ستم کړ — ښه چه تیر دَ ښایسته دَ ښایست وار شه
چه له عمره ئې بر نور وگړی وخوری — هم هغه له خپله عمره برخوردار شه

---

۱. په دې بیت کښ وینه په معنی دَ باشد او تر دې په مخ بیت کښ په معنی دَ خون ده، تجنیس دَی.
۲. لمړی مینه په مجهوله یا یعنی کور، دوهمه په معروفه یا یعنی عشق دلته هم تجنیس دَی.
۳. اوربل و مخ.

هیڅ منت دَ بل ریبار په ما بار نَدی   عشق ځما او دَ معشوق تر منځ ریبار شه
اوس دِ ځان و غم ته ساز عبدالقادر کا
چه دَ درست جهان بد خوی وُ دَ ده یار شه

خوښ له وصله نشوم، دَ هجران له غمه زه   نه کړم په گل مینه دَ خزان له غمه زه
خلق راته وایی چه زحمت دِ لا دوا دی   لا ښه چه ئې خلاص شوم دَ درمان له غمه زه
سر دَی په جهان کښ دَ همه واړه ښادیُو   نه دِ شم بې غمه دَ جانان له غمه زه
زه چه دَ خپل یار په چم کښ کښیناستم مقیم شوم   کښیناستم بې غمه دَ جانان له غمه زه
اوس به له دې روسته دَ خپل ځان په غم اخته شم   ډیر په زړه زهیر شوم دَ جهان له غمه زه
غم دَی له ازله په نصیب دَ عاشقانو   ځکه نه خلاصیږم یَو زمان له غمه زه
ما عبالقادر چه دا غزل دَ فراق ووې
رشک به کړم پر اوښیو دَ باران له غمه زه

که خبر می شې له خوږ زړگیه ته   شپه او ورځ به په نارو شې لکه زه
څو تاوُنه باندی تیر شِی چه پخیږِی   دَ پخو په حال خبر نه دِی اُومه
که دِ سوَی چیری زړه دَ عشق په اور وی   ستا به هاله زړه په سوَیُو باندِی سه
شاعران ئې له لذته واقف ندی   چه نسبت ئې کا له شونډُو گبینه
عام عالم له حقیقته خبر نشول   دَ تقلید خندا کَوِی لکه کانه
دَ دنیا په تله راتله پروادار نه یم   غم ښادی می شِی دَ یار په تله راتله
ښه لیده لکه آواز دَ روح خوراک دی   ځکه هیڅوک ماړه نشول په لیده
ښایسته دَ هیڅا ندی دَ خپل زړه دی   هغه خوار شِی چه و کښلیوُ ورکا زړه
گوره بیا دَ کوم کم بخت سرِی په خوله شو   سَل ښکنځل راته کَوِی چه غواړم خوله
تل ترې غوښت عبدالقدر کا دَ یارِیَ
یار هرگز ورته و نه وائِی چه ښه!

ساقی هسی پیاله راکړه رندانه   چه په څښل ئې لایقل شم دیوانه
سر زده له خلقه تښتم و صحرا ته   دَ مجنون غنُډِی ځان کړمه ویرانه
دَ مقصود میوه به هاله ځنی وخوری   چه په خاورو کښ ځان نیست کاندِی دانه
چه پکښې دَ ښایسته دَ مخ خیال دی   دَی ځما زړگیَ دَ چین نگار خانه
له غیرته می زړگی ټوکر ټوکر شِی   چه ئې گوتی په ویښتو وَهِی شانه
دَ بهار په وخت محتاج دَ مطرب نه یم   راته بس دَه دَ بلبلو ترانه
هرَه شپه هنگامه گرمه کړم په چم کښ   گنُډِی راشِی ښایسته پدا بانه

سر به سل ځله ترې ځار عبدالقادر کا
که دَ سر په ښندل مومِې جانانه

چه راوړَی ئې له اصله دَی له ځایه | بوی به څرنګ ځی له منبکو راته وایه
د ښیښې قلقل سرود دَی دَ مستانو | مستغنی له دف او چنګه دِی له نایه
نور عالم وته صفت کوَه دَ حورُو | ملا ما وته نور بې یاره مه ستایه
خو هم تا ته ښکاره ښه دِی پرده پوښه | دا ځما عیبُونه نورُو ته مه نمایه
چیری نه عزیز ذلیل، ذلیل عزیز کا | په نا اهلو سیوره مه کوَه همایه
په افطار کښې ئې دَ زر روژو صواب دی | یار چه نیسی درته مَی روژه پرې کشایه
مرګ ئې سل ځله بهتر دَی تر ژوندُونه | په بیلتون کښې دِ مَیَن مه بیوه خدایه

چه دَ یار په لیدو موړ عبدالقادر شِی
که ئې بیایې له دنیا هاله ئې بیایه

مخ لکه آفتاب و خپل مَیَن ته ځلَوه | زړُونه دَ غمازُو لکه موم پرې ویلَوه
ستا ترخه وَیل په ما خواږه لګی تر قندو | بې له ما مشتاقه ئې په بل مه ځلوه
ګورې و اسمان ته هیڅ نظر نکا و پښو ته | ډیر په کبر درومې خدای دِ مه درغلوه
ډیره کښلی جونه ما لیدلِی دِی په سترګو | ړوند شم که د تا غُندی په حسن بله وه
زور دَ غاښو مکړه مخ ئې صاف تر آئینه دی | زخم به پرې وشِی په ورو ورو ئې کښلوه
عمر می به لږ شِی که ئې تار دَ زلفو لږ شِی | فهم کړه اې ډمی! ږمنځ پرې ورو ورو چلوه
لاری تر منځ بند شوې هیڅ ادراک دَ ورتلو نشته | اوس دَ یار په لور قاصد دَ اوښیو زغلَوه
ګل دِ دَ مقصود دَ باغ که زړه دَی چه غوړیږی | تل سحر سحر شبنم دَ اوښیو بلوه
زړه ئې چیری نه وِی رقیبان له تا نه تورکا[1] | یَو زمان له ځانه خپل دلبر مه بَلَوه
دا غزل ځواب دَ خان دَ هغه غزل کیږِی | ''خدای له خپله یاره نه هیڅ یار مه بیلَوه''

پریږده چه پتنګ غنُدِی پر وسوځی ځان خلاص کا
څراغ دَ مخ ښکاره عبدالقادر ته بلَوه!

چه پیدا دَی هر محنت پدا دنیا څه | په جهان تر بیلتانه نشته بلا څه
هغه دم چه دوه مَیَن ځله بیلیږی | که باور کړې نور به سخت نه وِی تر دا څه
یَو زمان تنها له خلقه راته کښینه | چه ئې وَوایم لَرم درته پخوا څه
چه دا هسی نن خبری په ناخوال کړې | چا بدخواه درته وَیَلِی دی له ما څه؟

---

١. د دې بیت دَ پای مه بَلَوه په معنی دَ غیرش مکن، او د آخر بیت بَلَوه په معنی بیفروز دَی، په منځنی بیت کښې مطلب خوشحال خان خټک دَی، چه دَ بیت دوهمه مسرۍ دا هغه دَه او دا بدله عبدالقادر خان دَ خپل پلار په ځواب کښې ویَلې دَه.

هیڅ باور ئې په وعده باندې و مکړه ښایسته څه، په وعده باندې وفا څه
بیهوده دَ ګلو پاڼې خپرې ندې په رموز ورته وَیَلِې دِې صبا څه
سردرلو عبدالقادر تر تا ئې ځار کړ
خدای دِ نه کا چه به دریغ لَری لتا څه

که خانی که ملکی که سلطانی دَه که ئې ګورې بیهوده سرګردانی ده
مرګ ژوندُون بې کښلیو واړه مساوی دی ښایسته وُ ته پکار زندګانی دَه
په نصیب ځما دَ زړه دَ یار دَ زلفو له ازله بخره شوې پریشانی ده
له مستئ می ښیښه پریوته له لاسه ساقی قهر راته مه کوَه ځوانی دَه
دَ هوښیار په غلطی قهر عتاب شِې معذرت دَ ناپوهانو نادانی دَه
یا به سوځِې دَ چا خونه یا به خون کا چه آغوستې ئې جامه ارغوانی ده
دَ عشق بوی به ئې دَ ګور له خاورُو درومی دَ هر چا چه دَ خپل یار مینه جانی ده
خرابات لَره به ځم له صومعې نه چه پکښې دَ دواړو کَونو امانی ده
تر غمی دَ قناعت لاندِې جهان دی که دا ګوتې کړې په ګوته سلیمانی ده
سرې سرې اُوښی دِ په مخ عبدلقادره!
وَ خپل یار ته دَ یاقوتو مهمانی دَه

چه په زړه کښ ئې پرَته وِی دَ سر مینه بیا به نه مومی هر ګز دَ دلبر مینه
چه ترخه دَ بیلتون شته و به ئې نکړم که خوږه دَه لا تر شهد و شکر مینه
لکه زر تر خاص و عامه پوری زرد وِی هر سرَی چه کاندِې ډیره په زر مینه
ما ته بوی دَ خپل آشنا دَ زلفو بس دی که نور خلق کا په مښکو عنبر مینه
په کالو دَ ګدایئ لکه بادشاه دی په هر چا باندِې چه وکا اثر مینه
توری خاوری ئې مسند شِې اورنګ پریږدی شاه جهان دَ زمانې کا نفر مینه
دَ دنیا مَیَن همیش په زړه رنځور وِی ځکه نه کا په دنیا قلندر مینه
دَ پیغور غشی هیڅ اثر پرې نکا عاشقان لَرِی په مخ کښ سپر مینه
نور تمام له عیبه ډک عبدالقادر دَی
یَو لَرِی پخپل وجود کښ هنر مینه

نن به راز وایِی رازدار لما سره بویه دا چه غیر نه وِی را سره
په بستان کښ غوټئ ځکه هسی وا شوه چه پرې راغَی د تابوی صبا سره
بادشاهانو سره غم دَ درست جهان دی دَ یوې ډوډئ غم ګدا سره
لړ اوره کاندِې دَ نمر روڼا ئی کمه بد دِ نشی یَو زمان له چا سره
صرافان به ئې ځما په مخ وَولی دا ځما عمل روپئ دِې ناسره

ښایسته کله له چا سره وفا کا
چه به کا عبدالقادره تا سره

یا مجنون شوم خوی می نور شه، یا ستا عشق را باندِی زور شه
یا ستا عشق را باندِی زور شه، یا مجنون شوم خوی می نور شه
غم هاله ځما په کور شه، چه په تا باندِی مَیَن شوم
چه په تا باندِی مَیَن شوم، غم هاله ځما په کور شه
بیا دَ خیال په سمند سپور شه، څو وګړِی به پایمال کا
څو وګړِی به پایمال کا، بیا دَ خیال په سمند سپور شه
را ښکاره دِ زور و شور شه، اوس به څه له ما خلاصیږې
اوس به څه له ما خلاصیږې، را ښکاره دِ زور و شور شه
په معنی ژوندی په ګور شه، چه لیدَل دَ کښلیو نکا
چه لیدَل دَ کښلیو نکا، په معنی ژوندی په ګور شه
له ګلونو می زړه تور شه، پکښې بوی دَ وفا نشته
پکښې بوی دَ وفا نشته، له ګلونو می زړه تور شه
عندلیب ولی په شور شه، په وصال کښې نارې نشِی
په وصال کښې نارې نشی، عندلیب ولی په شور شه
درست صورت می لکه اور شه، زنهار مه بلوسه را باندِی
زنهار مه بلوسه را باندِی، درست صورت می لکه اور شه
په دریاب کښې کله شور شه، چه په اصل ګوهر خوړوُ
چه په اصل ګوهر خوړوُ، په دریاب کښې کله شور شه
خیال د یار دَ وروځو لور شه، پرې ریبی می دَ زړه وَلِی
پرې ریبی می دَ زړه وَلِی، خیال دَ یار د وروځو لور شه
چه وربل ئې په مخ خپور شه، رڼا ورځ را باندِی شپه شوه
رڼا ورځ را باندِی شپه شوه، چه وربل ئې په مخ خپور شه
دَ هغو چه ولی سپور شه، څه ئې مه ګڼه چه هیڅ دی
څه ئې مه ګڼه چه هیڅ دَی، دَ هغو چه ولی سپور شه
چه نظر ئې په بل لور شه، خوار شوې اوس عبدالقادره
خوار شوې اوس عبدالقادره، چه نظر ئې په بَل لور شه

چه دَ بخرو ویش په ورځی دَ میثاق شه — دَ چا وصل په نصیب دَ چا فراق شه
دَ اشنا له لوریه خط را لَره راغَی — بیا می اور په زړه تازه دَ اشتیاق شه
خدایه نور د یَار بیلتون را ښکاره مکړې — دَ زړګی قوت می لږ طاقت می طاق شه

هر محنت چه ئې په عشق کښې ؤ ځکولی
هم هغه سبب دَ قرب دَ عشاق شه
دَ ليدو لذت ئې څو دَی نه پوهيږم
چه په ياد مې ئې دا هسې خوږ مذاق شه
چه دَ نس په نغته درومی زړه آزار کا
و دوزخ وته تيار شی هغه عاق شه
دَ عقبا د ناوی عقد ځکه گران دَی
چه ئې مهر هم د دې ناوې طلاق شه
ځان او زړه عبدالقادر در له يار يوړه
نور حساب به ځنی څه غواړې بې باق شه

له همه واړه عالمه صلح کل شه
و ښو بدو خوشبوئی ؤرکوَه گل شه
تعلق په تيريدونی هوس مکړه
په بهار کښې په نارو لکه بلبل شه
دنيا جسرِ آخرت ده ياده شوې
دَ څړوُ غُندی تير تر دغه پل شه
دَ سبب تونگری عين نيستی ده
تونگر په خزانو دَ توکل شه
اضطراب به دِ خلاص نه کا له قضا نه
مستقل ورته په صبر و تحمل شه
ځان دَ عشق په اور لوگی لکه سپند کړه
هم به دا بهانه ځار تر ښه کاکل شه
په تأخير کښې آفتُونه پيدا کيږِی
معطل مکړه ساقی په داد دَ مُل شه
سترگی مه وَچوه يَو زمان له نمه
تل په زړه تروتازه لکه سنبل شه
خو خپل نيت عبدالقادره يار ته سَم کړه
بې پروا دَ بدگويیِ دَ چغل شه!

محبت چه د دَ څه په زړه محکم شه
هم هغه په حقيقت کښې ستا صنم شه
په دا لاری تله په سترگو په تندِی شیِ
ځکه پاتو دَ ناقص ځنی قدم شه
چه هر دم ئې پرې کوِی دَ عمروَنه
په مثال لکه اره دَ سړی دم شه
کشکی ما مهر دَ يار ليدلَی نه وَی
په هجران کښې ئې هر مهر راته غم شه
چه ژوندی پرې گرزيدم دَ اشنا درد ؤ
اوس پوهيږم و به مرم چه درد ئې کم شه
کوږ اوسَم پخپل ځای واړه زيبائی کا
دَ دلبرو وروځی کږې قامت ئې سَم شه
چا ئې شمار نکړې حلقې دَ تورُو څينو
په فکرت ئې ډير وَگړِی پسی تم شه
چه په هجر کښې ئې وَ نمرې لا پايې
په تحقيق عبدالقادره تر يار گرم شه

څو دَ عشق په اور دِ نه ده ويلِی وازده
که دعوا دَ عاشقیِ وکړې تازده
ته به څرنگ پدا هونبره شتاب درومې
چه دا لاره څړو دَ يکه تاز ده
نا اميد ئې هيڅوک نه درومی له وره
په هر ځای ئې دَ کرم دروازه باز ده
دَ طاوس وزر طاوس لَره بلا شِی
شارونی په قفس کړې خپل آواز ده
هنرمند دَ خپل هنر په لُومه بند شِی
دليری دَ باز بلا په ځان دَ باز ده

لوئی ونی سیلیٔ پرې باسِی نه پوټی[۱] — عاقبت سرنګونی دَ سرفراز ده
دَ غماز وینا وینا واروه مه اروه — چه وینا ئې دوست ګداز دښمن نواز ده
سر ساتَنه په مذهب دَ عاشقانو
له اشنا عبدالقاده لا جوزا ده

خدایه مکړه دَ هیچا په کور کښ غوټه — زر چه غوټه شِی یا ګانی شِی یا لوټه
که په رنګ دَ خټکی یې په دا څه شو — چه مزه دَ خټی نه لرې پهوټه[۲]
ساقی ډکه پیاله را دَ هغو میؤ — چه ئې څښونی شِی بیخود له یوه ګوټه
چه سودا کا بې دَ کښلیو له ښه مخه — عاقبت به دَ هغه سودا شِی تروټه[۳]
حال دَ واړُو په وار وار راته معلوم شو — چه دِ وینم په خوله سوچه په زړه جوټه
ماتی ماتی زلفی بیا په مخه راغله[٤] — دَ تقوا مینه ئې بیا کړه سپیره لوټه
تر هغو زلمیو ځار عبدالقادر شه
چه دنیا ئې کړه دَ ځان دَ وړاندِی لوټه

چه دلې هورې دَ مرد پرده پوشی ده — خاموشی ده، خاموشی ده، خاموشی دَه
په سبا به حقیقت درته معلوم شِی — چه نن شپه د تا له چا هم آغوشی دَه؟
په کوښښ چه نه زیاتیږِی دَ چا بخره[۵] — سکه بهتره و سړی ته کم کوشی ده
کله لب په لب دَ یار کله دَ جام بِردِی — هسی رنګ دَ نیک بختانو مَی نوشی دَه
په قیامت به له قیامته خبر نشِی — چه ئې ستا له سترګو شوې مدهوشی دَه
چه ئې یاد په هر ساعت په هَره ساه یې — له هغو نه ولی ستا فراموشی دَه
تر ناقصه هوښیاری عبدالقادر ته
په سل زر مرتبې بَه بیهوشی دَه

دا وینا دَ ناروغ زړګی شافی ده — یوَه زړه لَره یوَه مینه کافی ده
په ازل ئې څما دُرد، دَ نورُو صاف کړه — له ساقی سَرَه څما سینه صافی ده
دَ هر ګل احسان ئې داغ په ټټر ینښ شِی — دَ ځوانمرد ټټر داغ داغ په تلافی ده
چه له نورُو دَ انصاف طمع لرینه — په مذهب څما هم دا بې انصافی ده

---

۱. یعنې کوچنیٔ او ټیټی ونی.
۲. یو بې خونده شان خټکی.
۳. تروټ: یعنی نقصان او تاوان.
٤. د دې بیت دوهمه مسرئ په یَوه نسخه کښ هندی دَه "چوړه خلق پهر همارا توبه توټه"
۵. ځایی بخره.

سخندان به ئې په کوُمه خوله بیان کا ستا دَ خولې تشبیه راوړه موشگافی ده
ابلهان به ئې باور په اشنائی کا دَ هر چا چه په وعده کښې خلافی ده
دَ زر بفتو په اودو به څه پوهیږې؟ چه پیشه ئې همیشه خمتا بافی ده
هیڅ پیغور دَ عصیان مه کوهَ و ما ته تر گناه می دَ دوست زیاته معافی ده
مرد ئې مه گڼه چه لافی بې کردې کا مرد کرده بې لافو کا، ښځه لافی ده
دَ خپل ځان دَپاره نیم درم اسراف دی چه په بل خونه ښندې بې اسرافی ده



خو هم دا عبدالقادر ته بیا بیا وایه
یَوَه زړه لرَه یوَه مینه کافی ده

چه ژوندُون د دې جهان جاودان نشته په هر حال چه گذران شِی، ارمان نشته
نوم ئې ځکه دَ جهان په جهان کښیښو جهنده دَی قراری ئې زمان نشته
هم هغه له زیانه خلاص تمامی شود شو چه په زړه ئې غم دَ سود دَ زیان نشته
دَ هر خان چه نه ډوډیَ وِی نه توره ښه ځواب ئې دربان وکا چه خان نشته
که حاسد می په زوال دَ نعمت گرزِی څه می کیږی ترې می ویره چندان نشته
په ژړا که تور دَ سترگو سپین کړم ښائی دَ یارانو نخښی وینم یاران نشته

ځان هاله عبدالقادره چه جانان وِی
په صورت باندِی ځان بار، چه جانان نشته

دَ میړونو هغه شته چه دَ تا نشته مه وایه چه ځما نشته دَ چا نشته
سترگه ور به څه باور پرې باندِی کاندِی که ړانده نارې وهِی چه رُڼا نشته
دَ صبا په حال غوټیَ دَ نوبهار زده دَ خزان وهَلِی وائی صبا نشته
د دنیا زویه په خوی دَ خپلی مور دِی بې وفا دِی پکښې بوی دَ وفا نشته
په منکر بانِدی لیوه په ما یوسف یې! په دوه کَونه دِ مخَی دِ لقا نشته
ستا په بوی چه همگی ړانده بینا شول ستا له بویه بې یعقوبه اشنا نشته
وایِی خاروخس جارُو کړه چه زه درشم خاروخس خو به هم زه یم بې ما نشته
هر سحر سترگی دَ گل په اوښیو ډکی پدا باغ کښې بې ژړلُو خندا نشته

که طلب دَ کیمیا کړې گنُدِی بیا مومې
پدا وخت عبدالقادره رشتیا نشته

دَ همه بدیُو سر بدآزاری ده هومره ظلم جور مکوَه زاری ده
چه په بد و نیکی کاندِی میره هغه په نیکی چه نیکی کاندِی خرخاری ده
تا په سترگو خوب ځما له سترگو یووړ بیا وَیَل کړې چه له څه دِ بیداری ده
ساقی هومره شراب را چه تمام مست شم تر نیمگړی مستیَ بهَ هوښیاری ده

یو زمان می به له ځانه یار بیل نکړ ولی څه کړم لاس می نه رسی خواری ده
قراری آرام دِ کا چه په زړه روغ وی په نصیب دَ خوړُو زړو ناقراری ده
هَرَه شپه را سَره مل وی په بیولتون کښ ستا تر خیال پوری ځما شرمساری ده
چه ئې نه مومی پرهیز کاندِی له کښلیو را معلومه دَ زاهد پرهیزګاری ده
په ساتَل دَ خوږو زړونو نه پوهیږِی دَ زړه څور دَ نادان کښلی یاری دَه
خدای دِ روغ عبدالقادر ور ځنی نکا
چه ئې ستا له سترګو شوې بیماری ده

که ترخه دی هم شراب دَ قهر نغره ظلم جور په چا مکړه ځګروره!
باز چه وینی دَ ځګر خوری مرګ ئې ژر وی له دیو وینو ځان ساته ځما ځګره
هیڅ حاجت دَ بند زندان ور لَره نشته بند زندان دَی دَ دانا دَ خولې خبره
دَ دوران دَ حادثو غشی ئې نه خوری هر حکیم چه واغوندِی دَ حلم زغره
چه دَ زړه تر کمر پریوزی ریزمریز شی خدای دِ پرې نه باسی څوک له دې کمره
که سړی په اصل یو دِی فرق ئې ډیر دی یَو په یَو وِی، یو په سله، یو په زره
مرغلری سل اخستی په دینار شی هم په سل دیناره مُومی مرغلَره
که بادشاه که امراء ځان به ئې سیال کړې
چه امید نه کړې له چا عبدالقادره!

زړه مدام راته وَیل کاندِی چه ژاړه په ژړا ژړا بیل شوی میَن غواړه
په طلب ئې دَ دنیا ودانی پریږده لیونیو غنُدی ګرزه په اوجاړه
مصلی دَ بې ننګئ ور پسی لنګ کړه دَ ناموس پروا ئې مکړه و ئې نغاړه
یار ځما دَ سترګو تور پرې ګرزیدمه په هجران می ئې دَ سترګو رڼا لاړه
ښایستې که دَ کشمیر که دَ بل ملک دی تر یوه باڼه قربان شه دَ یار واړه
دَ مکې زنځیر دِ نور نیسی په لاس کښ ما نیولِی دِی دَ یار زلفینی دواړه
په خواری مونده شی کام له ډېر زړونو په محنت سَره سره زر خیژی له کاڼه[1]
که رضآ دِ دَه ځما په سر لویئ په خندا خندا راځه په لکه غاړه
تل دَ یار په سترګو مست عبدالقادر دَی
که نور مست وی له شرابه یا له تاړه[2]

---

۱. دا کلمه تحقیق غواړِی، دَ سیند خاوند لیکی، چه معنی ئې هغه شیله ده، چه سیل لوئی لوئی، ډبری ورته راوړِی وِی، ممکنه ده چه دا کلمه به په پښتو کښ دَ کان دَپاره وضع او بیا به عامه شوې وِی ځکه چه دَ پښتونخوا اکثر کانُونه په غرو کښ دی.

۲. په هندی کښ یو راز بوټې دَی چه نشه کوُنکَی مشروب ځنی جوړیږی.

په لاری تلَمه په مخه راغله یَوه دلبره پری رخساره
دَ نمر په شانه لا ترې روښانه په کښلی مخ وه هغه نگاره
په قامت سروه، په تلو تیز روه، ابرو کمانه غشی مژگانه
په سترگو بازه، خونریز ته سازه، په ویښتو لیله په مخ نهاره
غاړه بلنده، خاطر پسنده، عنبرین مویه، یاسمین بویه
په شونډو لعله، په زړه الماسه، په سپینو غاښو دُرِ شهواره
په زنی سیبه، بې له آسیبه، په ملا تر خپلو ویښتو نریه
شیرین کلامه، نازک اندامه، ول ول ئې زلفی، لاله عذاره
بې میُو مسته، خوله نیست و هسته، ډکه له نازه خالی له نیازه
سر تر قدمه، ثابته روغه، له هَرَه عیبه پاکه ویزاره
مخ ئې څرگند وُ، نظر پر بند وُ، د مخ شعلې ئې د مخ حجاب وې
په خیال خیال تلله، نظر ئې نکړ، هرگز و چا ته، له کبره عاره
لما غائبه لکه بریښنا شوه، په مځکه لاړه، که په سما شوه
هیڅ نه پوهیږم چه چرته دا شوه، راته وَوایه اې خبرداره
هوَس ئې یووړ، غم ئې در پریښو، داغ ئې بیا نوَی درباندِی کښیښو
مقصود ئې دا دَی عبدالقادره، اوس پسې گرزه سینه افگاره

دریغه نور غمونه لیری شوَی له دله
پکښې غم دَ خپل آشنا وَی تل تر تله
شبنم وصل دَ گل بیا مونده خاموش شو
ترې محرومه شوه چه شور کاندِی بلبله
ښه چه ژبه دِ قلم شوه په مجلس کښې
شمع تا چه دَ خپل سوز قصه وَیَله
عاشق هیڅ نه وُ خبر دَ عشق له سوزه
دا لمبه پرې معشوقې ولگوَله
دَ فانوس په پرده څراغ کله پټیږی
که ئې مخ په پلَو پَټ وُ ما لیدله
که په زړه می دَ یار یادو میشته وکړه
دَ یار خیاله ته می پاس په سترگو مله
په ماتم دَ پروانه چه ځان ئې وسو
شمع اور په تندی بل کړ گرزیدله
درسته شپه دِ په نارو عبدالقادر کړ
ته بې غمه په پالنگ باندی څمله

په خاطر هونبره ندِی المونه
چه ئې وشمیرم و چا وَته نومونه
چه نور مینه کا په کښلیو زه ئې گورم
درست لړمون می له پخساکه شو کرمونه
محبت موافقت دَی چه واقع شِی
نه په سحر په افسون دَی په دمونه
چه دِ ویر دَ بیلتانه څموږ نصیب کړ
مگر نه وُ په جهان کښې نور غمونه
نوې میاشت به ئې نعلونه ستوری منځ کړم
که نازک دَ یار سمند لرِی سمُونه
که دَ درد دِ په بې قدرو قدر نشته
ستا دردونه به په سترگو موږ زغمونه

چه پامال دَ نندارچیو زړُونه نشِی[1] په ورو ورو ږده په نځا کښې قدمونه
هومره اور درکښې بلیږی ایرې نشوې بلا سخت یې دَ عاشق ننه لړمونه
چه طالع دَ سړی نه وِی څه په کار که ځوک افزون لِړِی لښکر تړی بارونه
څښه شراب دَ محبت عبدالقادره
څو لا ستا دَ خاورُو سازندِی جامُونه

رایشه چه رایشی ښادی ځما په خونه مه درومه چه نه درومی ځما په زړه سیخونه
نه گورې که وگورې احوال می به معلوم کړې ځی چه ځی په مخ ځما دَ سرو اُوښو ورخونه
مه خانده چه نه خاندِې په ما پوری اغیار سره مکړه، په ما مهر کړه که ډار کوې له خونه
نه وینم چه نه وینم دلبر جهان په سترگو مه لیدی چه نه لیدی هر گز کښلی مخونه
کښینوی چه کښینی گرز غبار دَ ویر له دله
شی چه نشی دا په بیدلانو شواخونه

موږ ته څه ناحق عالم وایی پندُونه پخپل عقل هر سړَی کا انندونه
دَ نور چا په موږ څه کار چه امتناع کا که دَ یار په مینه سر او مال ښندونه
محبت لکه دریاب په زړه را وخوت دَ دریاب په مخ کښې څوک تړی بندونه
دَ پیوند په پرې کوَلُو فقیری شِی نه په دا چه ځبله کښیږدی پیوندونه
بې اختیاره ورکاوه شی زړه وکښلیو نه دا کار په مصلحت شِی په پندونه
بهیمه په خوراک شخوند کا، دَ سړیو دَ خبرو په معنو بویه شخوندونه
چه ژویه شِی ستا بیان عبدالقادره
په رنگ رنگ ترې پیدا کیږی نور خوندونه

ناز پروره چه په غاړه کا هارُونه په سینه ئې دَ گل وشِی پرهارونه
ته به وایې په گلابو شبنم پریووت چه له قهره ئې خولې شِی رخسارونه
که یَو ځل چیری غلط شم توبه وی می په ورځ سل غلطئ کړې نه ئې شمارونه
ما به تل دَ یار تلی کښیښول په سترگو که می نه درلَې باڼه لکه خاوونه
په لیدَل دَ ښایسته غزل انشا کړم عندلیب په گلو کاندِی چیغارُونه
دَ لبانو جړئ هم ور څخه شته دی که ئې دواړه توری زلفی دِی مارونه
راغَی وار د تا د تلو عبدالقادره
په وار وار یارانُو کړه خپل وارُونه

۱. ژوندون نشی.

که دِ نه ده دَ خپل مخ چهره چرکینه | آئینه ځما دَ زړه نه ده رنگینه
چه و تور ته نیژدې شی هغه تور شی | په ستنه راځنی گرزه لکه سپینه
چه ئې زړه دَ محبت په لمبو وسو | دَ دوزخ له اوره څه پروا لرینه
توره سپه به په عاشق باندی سپوږمۍ کا | که پلَو له مخه واخلی مه جبینه
وار په وار می له زړه واړه مینی لاړې | بې له کنبلیو چه هرگز ځنی نه ځینه
دَ بلبلو له آوازه ئې اثر دَی | دا غوتۍ چه گریوانونه تل څیرینه

غیر له حق، مینی همه واړه حجاب دی
مکړه نور عبدالقداره په څه مینه

نندارو لَره راځی چه پسی ځونه | په اختر به زلمی جُونه کا سیلونه
ته به وایې مخ ئې گل دَ پیغمبر شِی | چه ئې دِمه په مخ وَوهی خالونه
چه په سیل دَ بهار دَ گلو گرزی | زلمی گل په بگړۍ ږدِی په اوربل جونه
ځنی دواړه زلفی ډکې کا له گلو | څوک په غاړه دَ گلونو کا هارونه
ژړ او سرَه نمری اغوستی گلرخانو | وایې سبرونی ونیوَل گلونه
چه گلونه ټولَوِی سندری وائی | شرمنده کا دَ بلبلو آوازونه
درست صحرا په خوشبوئی سَره خوشبوی کا | په هغه مځکه چه کښېږدِی قدمونه
دَ لاچی لونگ په ځای دستې دَ گلو | وُر ستوی و خپل خپل یار ته په ملکونه
چه له سیله را روانه شی و کور ته | گل لمن، بلبل ئې نیسی آستینونه
چه له هسی نندارو نه ځان وباسې | شیخه! ورک شه ستا بې وخته خلوتونه
که لیدَل دَ ښایسته وُ پکښې نه وِی | چا به څه کړه اته واړه جنتونه
که آواز دَی که لیده دَ روح خوراک دی | نفسانی دِ باندی نکا غرضونه

تیر شو وار عبدالقادره را به نشِی
که ژړا کړې که فریاد کړې که آهونه

ډیر می ولیدل په سترگو کور باغونه | دَ فللک په گرد شو نوشال راغونه
نمر سپوږمۍ ئې پلیته په لاس نیولې | په وار وار ږدِی په سینو باندِی داغونه
ډک جامونه دَ حسرت ندامت څښی | چه ئې تل څښل دَ میو ایاغونه
دَ لحد تیاره په شمع دَ انصاف ځی | په کار ندی په هاتیانو څراغونه
فراغت ساقی ولجه دی پیاله راوړه | جهان نه پرېږدی تل چا ته فراغونه
بڼ چه تل به وُ ماؤا دَ طوطیانو | اوس ئې گوره چه پرې گنبت کاندِی زاغونه

څښه شراب دَ محبت عبدالقادره
څو لا ستا دَ خاورُو ساز نَدِی جامُونه

اې څما زړګیه ترک هوا هوس کړه ۔ دَ عقبی دَ تلو سامان په هر نفس کړه
دَ دنیا له خوانه هیڅوک ماړه نشول ۔ په دې خوان دِ ډیر څه وخوړل نور بس کړه
مقدم دِ تل په دین دَ دنیا کار وُ ۔ اوس دَ دین کارؤنه وړاندې دنیا پس کړه
ملامت په ځان کوهَ په هیڅا مکړه ۔ تا پخپله ولی مینه په ناکس کړه
دَ عسس ویره هغه کا چه پرَدی خوری ۔ خپل خوروبه کله ویره د عسس کړه
خس ته هم په خوارُو سترګو نظر مکړه ۔ ما په سترګو لیده سترګه ړنده خس کړه
چه دوزخ دوزخ یادیږی دوزخ نس دی ۔ و دوزخ وته روان وګړی نس کړه
چه ئې ما وته پیغور کاوه دَ مینی ۔ هغو لا دربانډِی مینه یَو په لس کړه
قافله دَ عشق منزل ته پوشیده تله ۔ برهنه و خاصو عامو ته جرس کړه
چه غلیم ئې تښتیده له جوانمردئ ۔ دَی ئې عفو په هنګامه دَ دسترس کړه
که لائق عبدالقادر دَ صافو نه دی
څو قطرې ور عنایت دَ خم بکس کړه

عارضی کارونه هیڅ دِی تعلق ور پوری مکړه ۔ چه جوهر درته حاصل شی همیشه طلب هغه کړه
جوهر څه دَی، د تا فقر، عرض څه چه بې له ده دی ۔ دا وینا تمام سلوک دَی که دِ نزده له ما زده کړه
دَ خواهش له چمه ووزه، دا کوڅه ده هر ګور تنګه ۔ ترک دَ غوښت وسیع صحرا دی په دغه صحرا میشته کړه
حقیقت روښانه نمر دَی، په لیده ئې سترګی بریښی ۔ دَ مجاز رانجه کړه پوری، پرې روښان دواړه لیمه کړه
چه دِ مخ دَ دلبر یاد شی، په ثنا صفت دَ ګل شه ۔ دَ زلفینو له فراقه په سنبل دَ زړه دمه کړه
شونډِی غاښ ئې چه در یاد شی په مثال دَ لعلو درو ۔ دَ خپل زړه وینی تووه ته، خپلی اُوښی ور سره کړه
خپل صورت چنګ و رباب کړه پر تارُونه اوښی څاڅه ۔ حرف و صوت دَ خولې پریږده پرې دَ مینی زمزمه کړه
نو آموز عاشق بلبل دَی شور ئې ډیر او مینه لږه ۔ که مثال دَ کامل غواړې و پتنګ ته ننداره کړه
لکه ګانې ډک له اوره هیڅ اثر ئې لیده نشِی
هسی رنګ عبدالقادره پټه ته دَ عشق لمبه کړه

نن په خوا راغله مه رویه، سمنبره سنبل مویه ۔ سمنبره سبنل مویه، نن په خوا راغله مهرویه
وئې مه می څه له کویه، چه ذلیل بې قدره نشې ۔ چه ذلیل بې قدره نشې، وئې مه می څه له کویه
که له ما دی عاشق بویه، بې له ما به بل نه ګوری ۔ بې له ما به بل نه ګوری، که له ما دی عاشق بویه
دَ عشق چار هر ګوره لویه، سربازان دِی چه ئې اخلی ۔ سربازان دِی چه ئې اخلی، د عشق چار هر ګوره لویه
صفت شِی دَ ګل له بویه، دَ سړی له ښه خصلته ۔ دَ سړی له ښه خصلته، صفت شِی دَ ګل له بویه
دریغه دریغه بده خویه، ته یَو څه رنګ بد غلیم ئې ۔ ته یَو څه رنګ بد غلیم ئې، دریغه دریغه بده خویه
دَ توبې له شست و شویه، مکدر صفا خاطر کړه ۔ مکدر صفا خاطر کړه، دَ توبې له شست و شویه
سحر بړِغ وخوت له جویه، لاړُو بیارته به را نه شو ۔ لارو بیارته به را نه شو، سحر بړِغ وخوت له جویه

څه حاصل له گفتگويه، عمل کړه عبدالقادره
عمل کړه عبدالقادره، څه حاصل له گفتگويه

چه همت د دَ تپوس دَی ځان باز مکړه — ځان په رسم دَ جانبازو، جانباز مکړه
چه محتاجُو ته محتاج وِی ډېر خسيس دی — بې بې نيازو بل هيچا ته نياز مکړه
اسبابونه دَ ناز راوړه هاله ناز کړه — ستا چه هيڅ اسباب دَ ناز نشته ناز مکړه
امتياز دَ خپل، غليم و بله گران دی — بې له خپله دله هيڅوک همراز مکړه
دَ اِتمام سعی کوَه چه کار شروع کړې — يا هرگز لمړی دَ چاری آغاز مکړه
دَ خبرو په لذت که خبر دار يې — بيهوده بيرون له شونډو آواز مکړه
که دِ لوستی دَ "لَا ترکنوا" آيت دی — سکه هر گز دَ ظالمانو، اعزاز مکړه
تولا او تبراء دَ ايمان څانگ دَی — چه دِ دا څانگونه نشته پرواز مکړه
په ليمه به ستا جفا عبدالقادر وړی
په شړل می په مراد دَ غماز مکړه

په فراق چه می روان له سرترگو جوی شه — لږ می پاتو و آشنا وته ابروی شه
ښه چه باد وته پابوس دَ گل حاصل شو — په طلب ئې کښته پورته تگ و پوی شه
په خبرو معنی کله ادا کيږی — خبر ځکه په حيرت له گفتگوی شه
مرتبه دَ هر چا څه؟ چه ئې معنی وی — جسم گل، عرض ئې رنگ، معنی ئې بوی شه
په تمثيل ئې چه دَ يار دَ قامت راوړه — په همه ونو کښ سبروُ، سر لوی شه
دَ کريم له خوا نه مځکه نصيب مومی
په ساقی ملامت نشته چه جام توی شه

## (ی)

که په لعل او درُو نور دولت مندان دی — لعل و در، ځما دَ يار شونډی دندان دی
دَ همت سر کوزی نکا و بادشاه ته — په جامه دَ گدائئ سر بلندان دی
دَ ساقی دَ پيالې قدر زاهد څه زده — چه په گوټ ئې سرومال ښندی رندان دی
چه په حال دَ فراق جنو نه نرميږی — هغه زړونه زړونه کله دی سندان دی
وائی څو لرې په زړه ځما داغونه — تر حساب تر شماره تير چندان چندان دی
که ساقی دَ پيالې دور بيا گردان کا — په مجلس کښ يَو څو پاتې هوښمندان دی
چه دِ طمع له چا شی عبدالقادره!
ته بنده شوې همه ستا خداوندان دی

ته چې زلفې په رخسارو ښوروې | در پوهېږم جهان ښور ماښورَوې
چه دِ واغوسې دَ خیال جامې گلگونې | خپل مَیَن په سرو لمبو نسکوروې
زرکې سر ځما دَ یار په قدم کښېږده | که خوبې ئې له رفتاره پوروې
هغه مخ چه دَ وصال په غوړو غوړ وی | دَ هجران په تاو ئې ولې سپورَوې
که دَ عشق په تور مې ووژنې راضې یم | ځما عشق دَ سر په ویره نورَوې؟
سپین غاښؤُنه په خندا را لَره راشه | که به مخ دَ رقیبانو تورَوې

بس دَی یَو دَ اشنا غم عبدالقادر ته
نور غمؤُنه باندِې څه ټندورَوې

پښې برمنډې، سر برمنډ گریوان پاره وَی | په طلب ئې په ملکونو آواره وَی
په ستنه شوی دَ دنیا له کاروباره | ناگڼلَی ناشمارلَی هیڅ کاره وَی
له دې عقله هیڅ فایده حاصله نه شوه | لایعقل دَ لیونیو په شماره وَی
دَ آشنا دَ غم په سیند کښې مې شنا کړَی | دَ جهان له هوسونو کناره وَی
دَ عالم په نیک و بد غرضې نه وَی | بې ځوابه بې حجته بې چاره وَی

په هر ځای چه کښلې دی عبدالقادره
په حیرت ئې دَ جمال په ننداره وَی

که خبر شې په لذت دَ ویرانۍ | اور به پورې کړې پخپلې ودانۍ
ستا په تله مې غم اندوه نصیب دَ زړه شو | دریغه دریغه را به نشې نادانۍ
جمعیت مې دَ خاطر په لیده ستا شی | بې تا خلاص نه یم یَو دم له پریشانۍ
ناکامې ور ځنې ښه دَه په څو رنگه | چه مې ولیدې دَ دهر کامرانۍ
غوړ تیره کا آئینه غبار ئې صافه | دَ مخ آب زیاتَوِی گرز دَ دهقانۍ
عاقبت به د دنیا دار له دنیا درومی | تش لاسُونه زړُونه ډک له پښیمانۍ
په هزاره دشوارې کښېوزې په لاس کښې | راشه گوره څه رنگ ځی په آسانۍ
چه په عقل غوبانه شپانه ترې ښه دی | پدا دَور هم هغه کاندِې خانۍ

دانا ځان، ناپوه گڼې عبدالقادره!
ته چه ځان ته دانا وایې، نادان نه یې؟

په وار وار ئې په هر چا وکړې بازۍ | دَ جهان په ورکړه هیڅوک مه نازۍ
په آخر به ئې له تا سی غلیمان وړی | پخپل لاس ئې پخپلوانو وَ بازۍ
دَ اخلاص امید هیچا ته باتو نَشو | آشنایی ده اوس همه مهمازۍ[1]

۱. ټگې، چل ول.

بیهوده گله مندی کا له اسمانه — جهان ډوب کړ دَ غمازو غمازۍ
سر فراز ئې سرنگون درومی په کښته — را ښکاره شوې دَ دنیا سرفرازۍ
په معنی کښې مرگ ئې نشته تَل ژوندُون دی — دَ هغو چه پاتو شی نیک آوازۍ
گوره څه رنگ نازبردار دَ خاص و عام شول — چه ئې تل کوَل کبرونه طنازۍ
له اوله بلبل باز وې اوس باز باز شوې
عمر ولاړ عبدالقادره په بازۍ

دَ رحمت دریاب هغه وته په جوش دی — چه دایم ژړا زگروا کا په خروش دَی
لا تخف او لا تحزن دَ هغه بخره — چه له ډیره غمه نیښ پرې باندِې نوش دَی
له پیشو ئې ویره شی له مزری نشی — چه بې خدایه ویره کا په معنی موش دَی
دَ دنیا په سرای کښې مخ و آخرت ته — کاروانونه ملی لیږدی پوشا پوش دَی
چه به پروت وُ لب په لب له لب شکرو — نن په څو له تورُو خاورو هم آغوش دی
په بها ئې دواړهٔ کونه ورکول شی — که پیاله ئې څوک اخلی می فرورش دی
بیا به نه مومی زنځیر د یار د زلفو — چه په سر کښې ئې لاپاتو عقل و هوش دی
د سکوت هنر له کُل واخله بلبله! — چه په سل ژبی آواز نه کا خاموش دی
اوس ښکاره عبدالقادره می نوشی کا
چه صاحب د گناه بخش و خطا پوش دی

چه تر غوږ می دَ جرس نارې فریاد شی — ستا دَ عشق په بیابان ورک راته په یاد شی
یو په سله به ئې غم دَ زړه نصیب شی — هر نادان چه دَ فلک په ورکړه ښاد شی
تر شیرینی دِی دا کښلی لا شیرینی — ولی څوک دَی چه په عشق لکه فرهاد شی
چه په راغله مړاوی گل دَ باغ تازه کا — په تاثیر به دَ صبا کله هر باد شِی
نور چه بوس او کنار کا عیب ئې نه وِی — زه چه تش کاته کوَم ځما هیداد شی
هر سړی چه کمینی کا لوئی مومی — هم پدا خادم مخدوم، شاگرد استاد شی
چه پرې نه لگی وَیَل دَ نیک خواهانو — عاقبت دَ غلیمانُو په مراد شی
په همه وُ مریدانو پیر شفیق وی — تربیت ئې موافق په استعداد شِی
چه اساس ئې دَ ژوندون دَی په باد ینبی — پرې به څه دَ عاقلانو اعتماد شی
دَ منصور غنُدِی سنگسار عبدالقادر شه
که بې عشقه بل گناه وربانِدِی زباد شی

ما دَ مینی خوی له ځایه دَی راوړی — تهمت اوس را باندِی وایی عام وگړی
په هغه نفس که وخیژی راضی یم — چه می بې دَ یار دَ یادو سره نغری
مرده دل دِ له ټټره زړه بیرون کا — یَو ساعت په کور کښې به پریږدی څوک مړی

ښه چه راز می و خپل یار وَته ښکاره شو نه اغیار ته چه هر چا وَته ئې سپړی
ستا دَ رحم تر سیلابه پوری څه دی دا ځما گناه مثال لکه خسړی
په مانړی ئې هغه هم ر څخه یووړ چه را پاتو وُ دَ صبر چیری بړی
جمعیت چه له دنیا په دنیا غواړی هغه غړی په معنو دَ شگو پړی
په حرص به ئې نه لَږ نه به ئې زیات کا خپل قسمت ئې دَی هر چا لَره ورکړی
تل په خاورُو به ئې واسل پانړی گل شِی چا چه زړه ټوکر ټوکر و گور ته وړی
که درست عمر دَ یار غم عبدالقادر کا
خدای دِ نکا چه به شِی ور ځنی ستړی

که ښیرې کا که ښکنځل هر چه وائی هیڅ مه وایه ښایسته دِی باندی ښائی
دَ بهار په وخت هم دا وایه مطربه! چه په کښلیو مینه نه ښائی نه پائی
خلقې ئې انتظار دی ولیدو ته گوره مخ به دلبر کوم یَوه ته نمائی
هر مرغه د دې چمن پخپله ژبه ستا ثنا کا ستا صفت کاندِی تا ستائی
په دنیا به مینه څه عبدالقادر کا؟
چه آخر ئې خواه ناخواه ور ځنی بیائی

چه پیدا وِی له یوې قطرې منی ورته نه ښائی چه کا کبر منی
چه خلعت ئې دَ صورت له خاورو شوی په هر حال دِ خاکساری کا که منی
له خزانه به نه گل دَ صحرا خلاص شی نه به باتې شی گلوُنه چمنی
په نازک بدن ئې خت دَ ململ څرخی ځما یار ته جامې بویه سمنی
تنگه خوله ئې ښایسته حلقه دَ گوتی دواړه لب ئې نگینی دِی یمنی
ته چه هسی زعفرانی جامې آغوندې ژر به کړې دَ یار چهره کُرکمنی
ستا جهاد ته ئې هم ستا نفس پیدا کړ
که ئې کړې عبدالقادره دښمنی

دَ همه ښادیو سر دَ یار الم دَی چه فریاد ور ځنی کاندِی هغه گرم دی
څو دِ زړه هونبره ستم کوَه دلبره په تندی مو قبول کړی ستا ستم دی
شکسته په شکسته باندِی عزیز وِی ځکه زړه می ستا و زلفو وَته خم دی
مگر ستا دَ مخ نمر وَخیژی رُڼا شی گڼه درست جهان په ما باندِی تورتم دی
دَ ښادیٔ امید دِ لیری کا له دله چه په تا باندِی مین شه تَل ئې غم دی
آئینه چه ستا دَ مخ گوری سکندر شه چه په لاس کښ جام دَ میو لَری جم دی
عاقبت به مخ تورن لکه قلم شِی هر سَړی چه دو زبان لکه قلم دی
تر ایذا ئې لا پخوا سزا دَ کړو ده په معنی کښ ظالم مار دی یا لړم دی

منت بار دَ یار دَ خیال عبدالقادر دی
چه همیش ور سره مل په غره په سم دی

ستا سترگو وژلی به تر درنگه اوس ښخیږی
راشه زړه پرې یخ کړه که پدا دِ زړه یخیږی
رقص له خامیَ کاندِی دانه دَ دیگ په منځ کښ
پاتو له صوفی شی هاله رقص چه پخیږی
ستا تر سر ځاریږی ستا په سر ځما سوگند دی
بل مطلب ئې نشته ځرخ چه هسی رنگ ځرخیږی
خوب ئې باندی نشی لټ په لټ و بله اوړی
گل ئې دَ نهالیَ په نازک بدن ځرخیږی
ولی به له مځکی نشی گل عبدالقادره
تل چه تر گلونو ښایسته پکښ ښخیږی

نه یواځی دَ لاله په تېر کَی دَی[1]
په دا باغ کښ چه بې کَی دی، هغه کی دی؟
چه په تخت د قناعت دَ پاسه کښیناست
کمینه بنده دَ ده کاوس او کَی دی
هر چه وخورې هغه ستا شی نوری پرېږدې
دا دنیا دَ مهمانیَ ښانکی دی
په بشر ئې پرهارنه، زړه می سوری کا
دَ بیلتون په لاس کښ هسی ناوکی دی
چه بدخوی در کښ پیدا شی ژر ئې ورک کړه
بوټی وخیژی له مځکی ځو تنکی دی
په ورکړو ئې مشه خوښ بیا به ئې اخلی
دا جهان تر هلک لا په خوی سپکی دی
کنُدِی ستا په فضل خلاص عبدالقادر شی
په طاقت کښ خو هر گوره ټپکی دی

د خبیث په ښه صحبت نبث په ځو ځی
دَ ماهی بد بوئی کله په اوبو ځی
له اصلی بده به لاړه بدی نشِی
که دَ ښو په ښه دیدن په ورځو شپو ځی
لا کیسیه لا بازیَ ښکاریږی بد ته
دَ کامل دَ نصیحت اثر په ښو ځی
دَ مزریو په لوی ښکار باندِی نظر وِی
شلانډو مږکو لَره تروړی یا پیشو ځی
هر چه شوی په ازل هغه به کیږِی
عبث عمر په عبثو اندیښنو ځی
څه نظر به کا دلبر په افتاده وُ
چه دا هسی بد دماغ په کرشمو ځی
په لیمو به ستا په لور عبدالقادر ځی
که یارانو لَره نور عالم په پښو ځی

چه سحر دَ یار له لوریه شمال راشی
دا ناروغ زړگی می څه خو په حال راشی
اوس خو وار دَ وصل تیر شو بیلتون راغی
یا نصیب چه بیا نوبت دَ وصال راشی
زړه می ډوب شی پوښتیده ئې هر گز نشم
چه ریبار دَ یار له لوریه ملال راشی

---

۱. په دې بیت کښ لمړی کَی عربی دَی یعني داغ، آخرنی کَی یعنی څوک، په دوهم بیت کښ کَی دَ پخوانی پاچا نوم دَی.

نور شغلونه به دِ ووزی له خاطره
که په زړه کښ دِ دَ کښلیو اشغال راشی
دَ لیدو دَ وړوؤ تړو طاقت لړ شو
لا به کله ړومبیٔ ورځ دَ شوال راشی
دَ خپل یار له وصال ته امیدوار شم
چه سورت دَ یوسف ما ته په فال راشی
په هجران کښې خواروزار عبدالقادر شو
بیا به کله په شیوه په خیال خیال راشی

که دَ درست جهان بادشاه شې په هوا ځې
عاقبت به له جهانه بې نوا ځې!
که حشمت دِ دَ سکندر تر حشم ډیر شی
خالی لاس به ځنی بیا درومې یواځی
چه په تا باندِی مَیَن ورته دِ شا کړه
له غلیم سره دا هسی خوا په خوا ځې
دَ غفلت پنبه راوباسه له غوږو
چه کښو غُندی کوڼ نه دروم‌ې شنوا ځې
ستا په دا خندا خندا شِی دَ هوښیارو
چه آخر په ډیر ژړا په ډیر زګروا ځې
که خاطر دَ تعلق له باره خلاص کړې
دَ رحلت په وخت به هاله بې پروا ځې
په عزت په حرمت راغلې و دنیا ته
په بدخوی ترې شرمنده خجل رسوا ځې
څو قاصد لا دَ طلب راغلی ندَی
بهتر دَی عبدالقادره چه پخوا ځې

دَ ژوندون به ئې څه حال حلاوت نه وی
هر سړی چه په دنیا بې یاره ژوی
ما دِ خلدای په دنیا نلَری بې یاره
له دنیا تر یار پخوا دِ ځما تله وی
چه یو غم را باندِی تیر شی وایم خلاص شوم
نور غموُنه را پیدا شِی نوِی نوِی
یو مجنون سوی او لوی دَ عشق نه وُ
مینی ډیر کړل تر مجنونه دوی او لوی
څه حاجت چه ئې پوښتَنه کړې له حاله
خود ښکاره دِی دَ هجران دَ لمبو سوی
چه پکښې نه مهر، نه مینه، نه اخلاص وی
تر ودانه لا وران ښه دی هغه ژوی
محرم نشته چه خپل حال ورته بیان کړم
نامحرم ته وایه نشِی زړه می چوی
سل فتنې چه بیداری کا بیداریږی
بخت ئې ویښ شِی چه په غیږ کښ ئې اوُده وی
په نور څه عبدالقادره نه رغیږِی
په بیلتون کښ دَ یار یار دارُو دَ زړه وی

ستا څهره لَره خدای تل ارغوانی
که دَ غم څهره می دَه زعفرانی
سر په لاس در پسی درومم نه قبلیږی
نصیب مشه دَ چا دا سرګردانی
مَی نوشی تمامه شپه کاندِی له نورُو
په سبا به ئې په ما وِی سرګردانی
څو څو ګرانی می آسانی په زمان کا
زه به چیری پریږدم عشق په آسانی
اشارت ئې دَ دنیا تالا کوَل دی
چه صوفی په رقص کا دست افشانی
چه لاړ نشې په غفلت بیا به ارمان کړې
هر نفس دَ خپل نفس نګهبانی

چه په مخ ئې کاروانُونه دَ خط راغله اوس به وشی دَ شکرُو ارزانی
له دعا ئې اوس هم نه يم فارغ شوی که دَ کښليوُ په خدمت لاړه ځوانی
ورته عرض سلام دَ خوار عبدالقادر کړه
چه په چم باده گذر کړې دَ فلانی

په طلب چه دَ تندی وچ شی کومی غم دی نکا دَ حيات اوُبه به مومی
دَ طلب مصلې ډيرُو پسی لنگ کړې گوره کوم نه دَ دلبرُو شونډِی چومی
چه تر يخی ئې دَ بيلتون کړه په ځان تيره هم هغه به ئې دَ وصل پياله شومی
څښبه څښبوه شراب ساقی بيا به ارمان کړې عندليب نارې وهِی چه بهار درومی
معشوقې وژلی مړه ندِی ژوندی دی پدا تشه نانه څشو که مړه نومی
جدا شوی چه له يار عبدالقادر دَی
په هيڅ رنگ ئې اوُبه نه درومی تر کومی

دَ هغو چه اوربل شوَی په کوگل دَی دَ زړه سود ئې دَ آهونو په وکښل دی
ډير مَيَن ئې ځبله بيل کړه نه صبريږِی بيلتون هسی رنگ لا خير په بيلَول دی
زړه می لا دَ جدائئ په اور وسوځه! که په زړه کښې می دَ يار محبت بل دی
څوک ځما تر ياره ښه دِی په خلقت کښې که جفا را سرَه کاندِی بخت می خپل دی
ترو په څو به ئې خلاصی له مينی کيږِی په ازل چه اور نصيب ځما دَ دل دی
له يوه څراغه نه درومی بل څراغ ته پروانه وته وصال ځکه حاصل دی
څه باور ئې په ياری عبدالقادره!
چه چاپير تر هر گل لکه بلبل دَی

دَ قيامت په ورځ به سپک پاڅی سپک تللی په سبا به دروند پاڅی چه دروند څملی
تنها هيڅوک گورستان لَره لاړ نه دی خپل عمل غاړه غړِی ور سرَه زغلی
چه می سترگی باندِی وا دَ بصيرت شوې دَ عالم ودان می وليدَل نتلی
ناپوهان به ئې باور په دوانی کا چه په طمع دَ سيلاب دَ اوبو ملی
د دنيا کاروُنه ضد دَ آخرت دی دَ دنيا قبول په دين کښې دَی رټلی
نه صحت مومی نه مری هسی تاويږی چه په زړه وی دَ حسد منگور چيچلی
چه نظر می په ښو بدو باندی وکړ وائی وشړل له روه هغه بللِی
دَ قيامت له جوکه ډار عبدالقادره
نکا چا چه خپل ښه بد دلې تللِی

که ښکنځل دِ په بې دردو ترخه لګی | ما ته کړه په ما تر شهد و خواږه لګی
مشتاقان دَ تیغ په آب سَره سیراب کړه | تر ژوندون ئې ښې په تږی اُوبه لګی
سترګی پټی زړه بیدا لکه غنچه شه | دَ دولت نسیم دَ ویښو په زړه لګی
سنګدلان ئې له ناوکه بې بهره دی | په مشتاقو تر ګلونو پاسه لګی
چه ئې داغ ځما دَ زړه دَ داغ په سان دی | په لاله می څه خو څه خو لیمه لګی
دَ ښو اغزی می لیری په ژړا کړه | چه دَ یار په قدمونو تیره لګی

یَو ساعت عبدالقادر ځنی خلاص ندَی
هر زمان دَ عشق لښکری په ده لګی

دریغه بیا په ګلو ګنبت وکړی سبا شوَی | چه په باغ کښ رنګا رنګ ګلونه وا شوَی
دَ شبنم پیالې ئې نوشی لبالب کړَی | له مستیَ دَ هر ګل کیس قبا شوَی
تور بورا تر هر هر ګل قربانیدلَی | دَ بلبلو په هر لور باندِی غوغا شوَی
مخامغ له یاره کښیناستیَ یو ځله | دَ بیلتون غمُونه واړه پسی شا شوَی
که په کانِی دَ بیلتون میده شوم څشو | دَ حنا په دود خو وصل ستا له پا شوَی
ما به ځان لکه پتنګ تر صدقه کړ | که څراغ ئې دَ جمال راته نما شوَی
یار له ما نه لا و ما وته نژدې وَی | که تر منځ حجاب پاره پاره د ما شوَی
زه او ته په محبت کښ نه ځائیږی | زه او ته له منځه وَوَتی یکتا شوَی

خو دی پریږده نور راځه عبدالقادره
که دِ زړه دَی چه زه ستا شوَی ته ځما شوَی

بوی ئې نه ځی له خبرو دَ بهی | چه تشبیه دَ یار دَ زنی کا بهی
لاس می ورو نیسه په لاس کښ لاس دِ مات شه | چه پرې ونشی زخمنونه دَ پهی
دَ دنیا څربښت اماس دَی و دانا ته | و ناپوه وته ښکاریږِی فر بهی
مشتاقان کله تمیز دَ نیک او بد کا | که صاف نشته ساقی رامئ تهی
په امید دَ خپل مخدوم دستاریَ | واقع کیږِی له خادمه کو تهی
امتیاز ئې د سپین مخ له خاورو نشِی | چه ئې نه پرې ینښ لږ ګرز په یک تهی
که ئې ډوب کا په دریاب کښ و به ووزی | چه ګړی ئې له ازله شول تهی[1]

هغه بار چه اسمان نه شی اخستلی
په کوم زور به ئې عبدالقادر سهی

---

۱. چه ګړی ئې دَ نااهل شول تهی.

خدای می مکړه یَو زمان ځنی خالی ستا اندوه می دَی سبب دَ خوشحالی
که له خیاله خالی هیڅ ښایسته ندی ولی تا غُندی به بل نه وی خیالی
چه بې ځایه آواز کا په انجمن کښ دَ رباب غُندی به مومی گوشمالی
دَ سړی لکه همت هسی ئې فکر دَ عالی سړِی فکرُونه وِی عالی
سل جنجال له سل فتنې را سَره وکا بیا په ما باندِی نوم کښیږدِی جنجالی
ځان او مال تر جانی یاره صدقه شه نه یو دَی نه سل زر لک چه وِی مالی[1]
چه خپل یار دَ خادمانو سَره شمار کړ
څوک به کا عبدالقادر در سَره سیالی

ساقی مَی بویه چه وِی پرتگالی خواه پیاله وی مرصع خواه سفالی
علامت دَ یار دَ ډیری مینی درد دی روغ دِ نکا له دردمن سَره سیالی
مقدم په ډکیدل خالی کیدل دی ډک هغه شی چه خپل ځان کاندِی خالی
چه یو ځل په هل وَهَل کا مځکه سازه دَ امید تخم هاله کَرِی مالی
آشنایی کوَل آسان دی پت ئې گران دی یَو یو مرد دَ آشنایئ پت پالی
عاقبت به ته هم راشې ځما ځای ته زه که پروت یم په مځکی په نهالی
شپه او روځ عبدالقادر په جدائی کښ
واړه سترگی کړې اوره ښښگالی

په وَیَل دَ کوم بې رحم ځیگر ورځې چه دا هسی ډیر بس رایشې بیا ژر ځې
دَ عاشق دَ سترگو غر نه حجابیږی ولی هسی شان مخ نغښتی په میزر ځې
دَ لویئ په مقام به هاله کښینې که دَ ورکړی دَ مړانی په وزر ځې
دَ هوسیو سترگی توری دَ باز سرې دی خونریزی تر نور سترگو کا لا زر ځی
در پوهیږم چه به ژر مصلې لنگ کړې چه دوهې وته ډیر ډیره قلندر ځې
تصدیع مکړه کشتن گاه وته په سر ځِی
که په وژلو[2] دَ بیدل عبدالقادر ځې

که گلاب لکه باران ور باندِی اوری دَ گلابو بوی به لاړ نشی له اوری[3]
صباحت ئې دَ یوسف همیش منظور وُ ځکه سپین شو دَ یعقوب دَ سترگو توری
هر یَو گل په خواست ترې وړه ځان ئې خوشبو کړ چه صبا خوشبوئی راوړه ستا له لوری

---

۱. دَ غوړمالی.

۲. وژله.

۳. تجنیس دَی یعنی بولان چه یَو وانښه دَی.

مکړه خدای چه دَ وفا خویونه نورکړم	که هر څو می یار جفا کا تل می زوری
که زاهد دَی که عابد که شیخ ملا دی	همگی دَ خپل مقصود په لوری ښوری
پاس دَ دار په سر منصور دَی دروغ ندی[1]	چه عاشق شِی بیا به سر له عشقه ژغوری؟
پسی شا دِ سوگندوُنه خوری و سر ته	هم هغه چه مخامخ دِ په سر لوړی
قراضې دَ زرو څه لره په مخ ږدې	په وجود دَ نمر نمای نکاندِی ستوری
تر ژوندُونه مرگ ښه دی عبدالقادر ته
چه ئې یار رقیب ته خاندی دی ئې گوری

دَ یوه په غولی ویر، دَ بل سرود دی	چرته غم چرته ښادی دَ دنیا دود دی
په نور څه ئې صحت نه کیږِی له درده	په بیلتون کښ دَ یار یاد دَ خاطر سود دی
په ډیروالی ئې لا غم په سړِی ډیر شی	بیهوده دِ په دنیا پسی مښود دی
رنگینه شعر می مه گڼه خبری	وا روان څما دَ زړه دَ وینو رود دی
چیری نه چه خالی لاس ور ځنی وَوزې
خرید کړه عبدالقدره بازار تود دی

نور عالم خپل خوب کا، رنځوران اخته په نخول وی	مځکه توده کوم ده، چه اوربل پرې باندِی تل وی
نر ناحقه سترگی دَ رنجو په بار درنې کا	کله دَ هوسیو سترگی توری په کجل وی
بل مراد ئې نشته په دنیا کښ بې له دا نه	خاوری دغه ملک شوی چه محبوب پرې یښی پل وی
هر چه لمړی شوی په آخر به هغه کیږِی	څوک به ئې اول کا چه پس شوی په اول وی؟
کله به لا درومې له ما اې دَ سحر خوبه	خوب بې غمه نکا چه په مخ کښ ئې منزل وی
فکر لیونی دَ سبا نکا ځکه خوښ وی	غم دَ هر سړِی په اندازه دَ طول امل وی
هر چه محبت لری دَ یار دَ تورو زلفو	تل به ئې په زړه کښ فکرتونه مطول وی
ما په زړه ویشتلې فریادونه کړه په زوره	ستا سوی نارې په ما شیرینی تر عسل وی
څه وایې و ما ته، ما ته لار دَه خطرناکه	هیڅ پروا می نشته که دِ خیال را سَره مل وی
تل که آه فریاد عبدالقادر کاندِی گرم ندی
بیل له فراغته همیشه له یار بیل وی

له جهانه هسی رنگ دِی یاران تللی	ته به وایې چه هر گز نه وُ راغلی
نښانی ئې په جهان کښ موندی نشی	هسی ورک شول دَ هجران سپرو نتلی
دَ بریښنا غُندِی ښکاره شول بیا فنا شول	په ځیر ځیر مو ورته هیڅ نه وُ کتلی
نه مو سترگی په لیدو سَره مړې کړې	نه مو وُ په ډکه خوله و بله خندلِی

[1] منصور دروغجن ندی.

نه مو زړونه ځبله تش کړل په خبرو | نه مو پټ رازونه ؤ ځبله ښیَلی
چه ناګاهه بیلتون مخ ورته ښکاره کړ | له موږ بیل شول په ارمان تېر داغلی
له احواله ئې خبر نه یم چه څه شول | څوک په بیارته ځنی ندی جار وتلی
که خاکونو ته ئې ورشم نارې ورکړم | په ځواب ئې راته هیڅ ندی وَیَلی
یا له موږه مرَوَر شول ځواب نکا | یا ئې چا په خوله مهرونه دِی وهَلی
که ئې وغواړم خبر له خبردارُو | دوی پرې هم لکه موږ ندِی پوهیدَلی
که قبرُونه ورانوم پکښ ئې غواړم | ما بې خاورُو پکښ هیڅ نه دِی لیدلی
نه پوهیږم چه له کوُمه لوریه راغله | بیا ئې دِی و کوم مکان لَرَه بیولی
اې یوه خدایه ژر وران دَ دنیا سرای کړه | چه آشنا عالم ترې ځِی نا اشنا ملی

چه هر دم جرس دَ کوچ ووته بږغیږِی
فراغت عبدالقادر څرنګ څملی

توری زلفی دَ نګاری بې څه ندی | په سپین مخ ئې تار په تاری بې څه ندی
په لیدَل ئې روغ ناروغ شی بیمار روغ شی | دواړه سترګی ئې بیماری بې څه ندی
ډیر هوښیار به لیونی کاندِی پوهیږم | کرشمې دَ پریواری بې څه ندی
دَ بیلتون په اور ئې ننه زړه اوریږی | دَ عاشق سترګی خونباری بې څه ندی
درسته شپه ځما دَ آه لوګی ور درومی | دَ فلک سترګی بیداری بې څه ندی
په جهان کښ هیڅ ترخه نشته بې ګټی | دَ دنیا ګرانی دشواری بې څه ندی

څو به مینه پُټوې عبدالقادره
ستا دا تل نارې چیغاری بې څه ندی

مخ په بیدی بیدیا ونیوی ژړلَی | دَ صحرا دَ ونو پاڼی پټ خوړلَی
چه له وره دَ ښښتن ورتلی بل ورته | لکه سپَی په کاڼیو لوټو ئې شړلَی
دَ جهان دَ خوږو هیڅ غرضی مه وی | کل ترخه مې دَ خوږو غُندِی نغرلَی[۱]
دَ حرص دَ سپی غاښ مات په قناعت شوی | په زنځیر می بیا دَ صبر وَ تَړلَی
عاقبت به په ارمان ور ځنی درومی | که ملنګ وِی په سپیرو ایرو لړلَی
په ما نوم دَ بادشاهئ مه وی پوری | خوشامد می مکړَی چا تل ئې ربړلَی[۲]
هر ظالم به دَ دوزخ په اور کښ وینې | لکه سپی په زنځیرُونو څکړلَی

هر کاره به بهادر شاه چیری خبر کا
حال عبدالقادره مه وایه سپړلَی

---

۱. لوړلَی.
۲. خوشامد می مکړَی چا تل می ژړلَی.

بیا می شی زاړه غمونه په زړه نَوِی
چه دَ یار په بورجل رایشم یار نه وِی
حال که وایم و عالم ته منصوریږم
که ئې پټ ساتم په زړه کښې زړه می چوِی
دَ عالم له ویری آه وکښلی نشم
په کوګل کښې می دَنَنه شول الوی
په صحت ئې نارضا په درد بې صبره
د دې هسی رنګ زحمت دارُو به څه وِی؟
فرهاد غر په عشق کښې کینده زه صورت کښم
و منصف وته ځما زیاتی تر ده وِی
ده که یار ته واله جوړه دَ شودو کړه
تل روان دَ وینو رود ځما دَ زړه وِی
چیری نه وِی رنګ ئې هیر کړم په بیلتون کښې
په وصال کښې می به ځیر یار ته کاته وِی
ستا دَ سترګو خیال پرې وریږی ځکه ژاړم
نرګس تل تروتازه وِی چه اوُبه وِی
په پرېښول به دَ جهان له غمه خلاص شې
خلاصیدَل دَ غاښې له درده په وکښه وِی
و به وینې دَ یار مخ عبدالقادره
که دِ تل ور پسی دواړه لیمه سره وی

ته څه هسی بې نظیره دلبر نه یې
چه ښکاره په درست جهان لکه نمر نه یې
په هر کلی په مالت خبری ستا شی
هسی نه چه په عالم کښې سمر نه یې
په پیاله چه شونډې کښېږدې نو عسل شی
بیا به وایې چه په شونډو شکر نه یې
دَ سپوږمۍ ښایست په ستوریو باندی کیږی؟[1]
حاجتمن دَ لعلو درو ګوهر نه یې
اسمانونه می دَ آه په لوګی تور شول
ته لا هیڅ ځما له سوزه[2] خبر نه یې
که دِ زړه دَی چه بډای شې طمع پریکړه
څو دِ طمع چا ته شته تونګر نه یې
پهوړه[3] کچکول سیلی خو ډیر متاع دی
که دِ ستن په ګند کښې شته قلندر نه یې
په جهان دِ ځکه بوی د خوبۍ نه ځِی
چه بیدار لکه غنچه په سحر نه یې
ښه غزل درته بیان عبدالقادر کړ
له معنو ئې لذت واخله که کر نه یې

که فلک لکه آسیا دانه ئې سر شی
عارف ندی چه ئې زړه پکښې لربر شی
که اسمان دَ ممسک سترګی مځکه نس شی
وابسته ئې مخلوقات دَ بحرو بر شی
په زر کاله ئې ژوندون دَی ګمان مکړه
چه پکښې دَ توکل څښتن مضطر شی
خاوری زر چه ورته یو شی له غه پسه
په کاته ئې کانې بوټې واړه زر شی
که اصلی فقر د سیوره په سر وکا
هست و نیست به درته واړه برابر شی
چه خپل ځان دَ تلی خاوری دَ ګدای کا
دَ پله خاوری ئې په قدر تر عنبر شی

---

١. دَ سپوږمۍ ښایست په ستوریو نه زیاتیږی.

٢. له آهه.

٣. یعنی بوریا.

چه خپل ځان تر ځراغ ځارکا بیا وسوځی کُوم ملخ به دَ پتنگ تر ځایه ورشی
دَ زاهد مشرب جدا دَ رند جدا دَی له ماهی به کله کار دَ سمندر شی
هاله لاف دَ مینی کړه عبدالقادره
چه ترخه دَ یار په تا شهد و شکر شِی

ما چه لب دَ شکر شونډو دِی ځیبنبلی لا می اوس له خوږو شونډِی ځله ننبلی
ستا دَ سترگو په خیال هسی رنگه مست شم لکه چا وی دوه کلن باده نوشلی
که له سترگو دِ روان شی سیند دَ اوښیو وران به نشی چه ئې ستا په تندِی کښلی
دَ عاشق دَ صورت خاوری دَ یار مینه په ازل ئې دواړه دِمی سره اغښتلی
له توبری سره می ځان ځِی چه وکیښ شی ځکه ما دَ یار توبری نه دی وکښلی
شکایت دَ ښایسته وُ دَ خوی مکړه تر وفا دَ بل، جفا ښه دَه دَ کښلی
که بدرنگ مخ پټوی باری یَو روخ دی ښایسته دِ هرگز نه وِی مخ پوښلی
یَو دلدار چه دلداری کا بیا می نه موند په غوښته می دِی ملکونه پسی منبلی
چه مَیَن شوې غم زغمه عبدالقادره
په غمونو عاشقان دِی همیش لنبلی

هر عاشق چه هیله کاندِی له وفا می تر وفا دِ لا خوښیږی په جفا می
په رشتیا ځما مخ عاشق هغه دی چه دَ مخ می ننداره کا تر قفا می
دا دَ خیال شاطر می ډیر ملال را درومی گوره بیا په کوم دیار بند شو اشنا می
ستا زحمت دَ محبت دَی طبیب ووې بې لیدلَو به روغ نشی په دوا می
دَ ښامار له خولې مهره وکښل محال دی ستا په تورُو زلفو بند شوه مدعا می
دَ آشنا دَ آشنایۍ قدر می نه در[1] که په آور دَ بیلتانه سوځم سزا می
ستا دَ چم پوښتنه کاندی نه ئې مومی ځکه هسی سرگردان گرزی صبا می
زما وصل دَ هغو عبدالقادره
چه خپ سر شندی د وصل په بها می

صدقه شمه ساقی ستا تر پیالې چه دِ خلاص کړم دَ جهان له کشالې
ځو ځو ډیر دَ جدایۍ[2] له غمه ژاړم په رخسارو کښ مِی سازی شوې نالې
په یاری کښ به هاله صادق باله شې چه تر مرگه دَ یارۍ پت وپالې
یار هغه چه په محنت کښ یاری وکا ډیر یاران دِی په ساعت دَ نوالې

---

۱. می نه وُ.

۲. چه ډیر ډیر دَ جدایۍ.

محبت دَ عاشقانو عظیم کوټ دی پروا نکا دَ پیغور له اټالې
ساحران ئې دَ چشمانو دین ایمان وړی سحرگر که زړونه وړی دَ بنگلالې
په ښکاره نارې وهه عبدالقادره
په خاطر کښې به څو غم دَ عشق گالې

مخ دِ لکه نمر دِی تر نسبت ئې نمر مشال دی څوک به وایی هسی چه نمر ستا دَ مخ مثال دی
های دَ خدای دَپاره یَو دم مه دروومه له ما نه یَو زمان بیلتون دِ په ما خوار بیلتون دَ کال دی
سخت دی په سرِی باندی نیژدې بیلتون تر لیری یار چه لیده نشی تر دکن لیری دیوال دی
خلاص ئې له یَوه جنجاله نه وم بَل را واخلی هر زمان له ما سره په سل رنگه جنجال دی
وایی چه وبال دی چه نظر کا و ښه مخ ته ما په دواړو سترگو قبول کړی دا وبال دی
حسن یَو اثر دَی چه په مخ کښې دَ چا وشی نه چه کړه وړه ښه لَری هغه صاحب جمال دی
دم که می همدم دَی هیڅ په کار څما را نغی لږ چه دلاسا می دَ خاطر کا دَ یار خیال دی
څه برکت ناک دَی دَ عشق خم ورته حیران یم څو خلق پرې مست شه دَی لا هسی مالامال دی
هر چه سوختگان دی په خاطر به ئې لگیږی اور می دَ تټر چه سر وهلی تر مقال دی
زړه لری بډای عبدالقادر تر بادشاهانو
څه شو که په کور کښې دنیا نلَری کنکال دی

که ښکاره شی درویشانو عزت ستاسی گدایان به شی شاهان په دولت ستاسی
دَ دنیا نوبت، نوبت په نوبت درومی همیشه دی بې زواله نوبت ستاسی
څه شو نن که مو څوک نه پریږدِی وورته خبردار دی ډیر په قدر و قیمت ستاسی
سبا ورځ چه اجتماع دَ خلایق وِی په هر چا به شی ظاهر منزلت ستاسی
هم هغه به دَ نجات په لور روان کا چه پرې شی مهربانی عنایت ستاسی
غم اندوه شه په نصیب دَ دنیا دارو فراغت دَ زړه خوښی په قسمت ستاسی
ستاسی هومره ډیر حرمت پخپل څښتن دی چه به نور شی په عزت په حرمت ستاسی
په نصیب به دَ هغو شی چه نیکبخت وی دَ دوو کَونو سعادت دی خدمت ستاسی
دَ راحت امته کَوی اهل محنتو! خدای به نکاندی ضایع مشقت ستاسی
مددگار دَ گنه گار عبدالقادر شَی
گنُدی بیا مومی خلاصی په همت ستاسی

چه په زړه باندی ئې وا دَ عرفان باب شی دا جهان به ئې تر فهم دَ سراب شی
دَ وحدت دریاب به وینی کښته پورته خپل وجود به ور ښکاره لکه حباب شی
دَ خودیِ باد چه وباسی له سره دَ حباب نامه ئې لاړه شی دریاب شی
څو وجود دَ ذرې شته هومره زره ده خو چه محو خپل وجود کاندِی آفتاب شی

دَ هستۍ نوم هاله وربانډې ښائی　　　آمیخته چه له محیط سَره سیلاب شی
دَ عنصر دَ چاردیواله چه راووزی　　　ارویده لیده ئې واړه بې حجاب شی
د هر لورې ته چه مخ کا نمونځ ئې کيږی　　　چه قبله ئې دَ یار مخ وروځی محراب شی
په ځنبل دَ سترګو ځی تر شرقه عربه　　　تر نظر دَ عارفانو تله شتاب شی

خپل به هاله د یار شې عبدالقادره
که په تا بانډی ئې يَو مهر عتاب شی

نه په باغ نه په بوستان په ګلزار ګرزي　　　خراب زړه می هم هورې دَی چه یار ګرزی
دواړه سترګی ئې شاهین دِی قهرولی　　　سپور دَ ناز په آس دَ زړونو په ښکار ګرزی
په مقدم ئې دَ صحرا خاروُنه ګل شي　　　چه په سیل ځما یار دَ بهار ګرزی
که پرُون دَ رقیب وار وؤ نن ځما دَی　　　دَ اسمان دَ ژرندی دود دَی په وار ګرزی
که رنځور شې خود به در شی طبیب کور ته　　　طبیبان په طلب تل دَ بیمار ګرزی
دَ ښو په ناوکو ئې زړه خوږيږي　　　عاشق څکه آهومن ناقرار ګرزی
دَ هوسۍ غنُدې خپل خوب په میږی تون کړه　　　دَ اجل ښکاری په نیت دَ ګزار ګرزی
ما دولت دَ ګدایانو له وره بیا موند　　　که نور خلق دَ بادشاه په دربار ګرزی

په وصال به آسوده عبدالقادر کړې
که همیش به دِ په هجر کښ خوار ګرزی

نن په درست جهان کښ غوره یار ځما دی　　　په لیدو ئې سر ښندَنه کار ځما دی
دَ خزان ویره ئې نشته تل تازه وی　　　کښلی مخ ئې همیشه بهار ځما دی
په وار وار نورُو پیالې دَ میو نوش کړې　　　ساقی اوس ئې و ما راکړه وار ځما دی
وئې مه شلوې ځما له غاړی خدایه　　　دَ خپل یار دَ زلفو تار زنار ځما دی
دَ هر چا په غاړه پروت دَ مینی بار دی　　　تر همه واړُو چه دروند دی بار ځما دی
چه یَو دم می له خاطره نه بیلیږی　　　لا لتا نه دَ تا غم غمخوار ځما دی
درسته شپه ئې عشقبازی کوَم له درده　　　پدا څه شو چه جدا نګار ځما دی
که دسته دَ ګلو را کا هم به خار شی　　　په ازل چه نصیب شوی خار ځما دی
ښایسته لکه ګلونه دَ پسرلی دی　　　پرې همیش لکه بلبل چیغار ځما دی
عاشقان به دَ پتنګ غُندې پرې سوځی　　　په معنو کښ سرې لمبې اشعار ځما دی

که کرم را بانډِی کا عبالقادر یم
که حساب را سره کا زیار ځما دی

ګاه په خانقاه کښ ګه مقیم په میخانه یې　　　هیڅ درنه پوهیږم چه عاقل که دیوانه یې!
کله له هندو له مسلمان سَره خپلوی کړې　　　کله له همه واړه عالمه بیګانه یې!

ته که لیونی دَ هوسیٔ سترگو مینی نکړې ولی شپه او ورځ لکه غرڅه په ویرانه یې!
وایي راته وایه چه دِ جان که دِ جانان یم ځار شم ستا تر سترگو هم می جان هم جانانه یې
شونډې دِ یاقوت دی مرغلرې سپین غاښونه سر تر پایه درست دَ بادشاهانو خزانه یې
څوک دِ له لیدو څوک له خبرُو مراد مومی څوک دِ له وصاله دَ همه خلقو ستانه یې
بڼ دِ څه په کار دَی خو دِ مخ لکه گلزار دی یار لَره راغلې دَ گلونو په بهانه یې
لږ به ستا دَ مینی په رموز درته وَوایم مَیَن په اورېدو که دَ مجنون په افسانه یې
مَی دِ دَ خپل یار دَ شونډو څښلي دِي پوهیږم
ځکه په وَیَل عبدالقادره مستانه یې!

لوی لوی غرونه دِ په واورو تَل ودان وِی چه رودونه ئې په مځکه را پریشان وِی
په ژوره مځکه مه اوره بارانه! ښې اُوبه کاندِی ترخې بوی ئې روان وی
په چمن کښ ئې بد بوی گل شگفته شه زاغان ورشی بلبلان ترې گریزان وی
په هغه چمن ورځه دَ سحر باده! چه نسیم ئې په هر چا عنبر افشان وی
چه په راغله ئې د باغ گلونه وا شی همیشه دِ هغه باد په ملک وزان وی
چه پتنگ مشرب پیدا کړی په معاش کښ دَ هر چا څراغ چه بل شِي پرافشان وی
مبارک هغه بنده چه آخر بین وی کل محنت راحت و ده وته یکسان وِی
په رموز دِ ډیر څه ووَیل په لَږ کښ
پرې به پوه عبدالقادره سخندان وی

چه دا هسی آشنایان پکښ هر دم ږدی په غفلت په مځکه ولی څوک قدم ږدی
په خپل لاس لږم ماران استوی گور ته چه په مځکه کښ دینار ږدی یا درم ږدی
بیت اللّٰه په حقیقت دَ مؤمن زړه دی چه بې خدایه مینی کا پکښ صنم ږدی
چه ذلت ئې په عزت دَ ده اختیار کړ دَ سائل منت په ځان اهل کرم ږدی
ښې خبری در گوهر، خاموشی مُهر دانا تل ځکه په خوله دغه خاتم ږدی
هر چه دلته مستقیم په شریعت[۱] شِی په صراط باندی به هور ته قدم سم ږدی
چه داغونه په زړه ږدی ښایسته ډیر دی
نشته یو عبدالقادره چه مرهم ږدی

چه له مخه ئې آفتاب ماهتاب رخشان دی په جهان کښ څوک ځما دَ یار په شان دی
جمعیت ئې دَ خاطر په لیده ستا شِی په دا هیله درته جمع څو پریشان دی
چه ئې څوک په کوڅه تیر شی لیونی شی شیخه مه ځه پدا لار پری و شان دی

۱. عدالت.

نه یواځې دواړه زلفې زړه را ګاږي — دَ کاکل ویښته ئې لا خاطر کښان دی
دَ راحت ښیښې به تشې عاقبت کا — هغه څوک چه دَ محنت جرعه نقښان دی
چه په تش کاته ئې مس دَ وجود زر شي — درویشان دی، درویشان دی، درویشان دی
له آفته به دلې هورې خلاص نه وی — چه بدګوی، آزار رسان بد اندیشان دی
خود پرست دَ یار له وصله بیګانه وی — له خودۍ بیګانه دَ ده خویښان دی
تر شکرو ندِی کم عبدالقادره
تر نباتو که خواږه وَیَلی خان[1] دی

بیا ئې نیت دَ جنجال وشو چه نور کښلی راته شماری [2] — یار که تل هسی جفا کا ما به مرګ وته وسپاری
بل که هر څو ښایسته وِی خدای دِ نکا چه ئې ګورم — تر یوه بانه دِ کښلی دَ جهان شه واری واری
ستا چه هیڅوک اشنا نشته فراغت ګرزه هوس کړه — په هر چا چه آشنایی دَ جدایۍ محصل ګماری
دَ دنیا په باغ کښې ځای دَ همیشه استوګی نشته — عاقبت به له دې ښه طوطیان ووزی په چیغاری
دَ بلبلو دَ طوطیانو، په ګلونو سیل کیږي — په ګندګۍ په مرداره، تل کارګان ګرزی مرداری
هر چه ښه ئې له ازله په فطرت کښې ینبی ندی — چه به بد کاروُنه نکا نور به څه کاندی بدکاری
هر سړی په موافق دَ خپل همت نظر لرینه — په وَړو چارو هیڅ کله کاته نکاندی لوی چاری
که غمزې دَ دلبرانو تیرې توری دِ څرخ کړې — هم ورځی په تیرو تورُو بې پروا بې اختیاری
زړه دَ هیچا زینهار عبدالقادره آزار مکړه
چه په دین او په دنیا به آخر خوار شی دل آزاری

بیهوده دَ چا په چا باندی های های دی — پخپل ځان که ژړا کا دَ ژړا ځای دی
ګذشته عمر همه په لهو تیر شو — آینده که پدا شان ځِی ځما وای دی
که دِ جاه که دِ عزت که زویه ورونه — زړه پرې مه تړه عاقله تش نمای دی
محبت دَ مولا کړه، مولا باقی دی — په فانی چه محبت کاندی کوږ رای دی
نن سحر صبا بلبل ته نصیحت کړ — هغه ګل ور پسی غواړه چه دیر پای دی
دَ هوا په آس سپره په فهم درومه — پدا لار به هاتی نښلی هسی لای دی
لاف دَ خدای دَ بندګۍ کړې محکوم نورو — دَ هر چا چه حکم وړې هغه دِ خدای دی
که ئې شپږ اقلیمه وِی چه اُوم غواړی — و هغه ته بادشاه مه وایه ګدای دی
دَ همای دَ سیوری څه پروا لرینه — چه قانع پخپل قسمت شه خودهمای دی
دَ هغه سپاره پَی وړه عبدالقادره
چه دَ آس ئې دَ افلاک دَ پاسه پای دی

---

۱.   مطلب ئې خپل پلار خوشحال خان دَی.

۲.   چه تور کښلی راته شماری.

که دَ عشق په تور می کاڼی په سر ووری | زه به وایم واړه دُر او گوهر ووری
په چرگ بانگ مهال ئې داد دَ بوسې وکړ | مړنی ببنگال تل په سحر ووری
په تأثیر ئې دَ قدم خاوری خوشبوی دی | که په چم باندی ئې مښک و عنبر ووری
سرې سرې اُوښی می له سترگو وینی ندی | دا ځما دَ زړه له اوره شرر ووری
دَ رحمت سزاوار ښه چه گنه گار یم | باران بویه چه په تړی شجر ووری
دَ ظالم دَ سر دَ تاج لعلُونه ندی | په تندِی ئې له دوزخه اخگر ووری

دَ حاسد جفا زغمه عبدالقادره
تل دَ غم کاڼی په سر دَ ثمر ووری

محبت په کښلیو کا تمام وگړی | چا دا اور دَی ښکاره کړَی ځنو نغړی
ثمره ئې خواه مجاز خواه حقیقت دی | په انسان کښ دَی کرَلی دَ عشق زړی
ځما داغ عارضی ندَی چه به ورک شی | دَ لاله غُندی می داغ ځائی راوړی
گل گریوان په نغمه څیری دَ بلبل کړ | نسیم ندی گریبان دَ غنچې سپړی
را به ووزی عاقبت دَ غم له څاهه | چه نیولَی ئې په لاس دَ مینی پَړَی
ندی مرد چه واخلی ورکا مرد هغه دی | چه گټی پخپلو غړیو پوخ کا غړی
چه څوک نکاندِی آزار لچا نه اخلی | تر کسریٰ تر حاتم ځان هغه تیر کړی
که صفله څښتن دَ جاه شی په دا څه شو؟ | په معنی بربوگی پورته کړ خسړی

زه خټک دَ یار په غم تازه تازه شم
غوریه خیل رحمان که شو ور ځنی سترِی

که هر څو ښایسته ډیر وُ دَ وگړی | موړ ته غوره کړې نور نورو غوره کړی
ته هم هسی دل آزاره جفا کار شوې | چه تل ستا له لاسه ناست وه په زړه سترِی
آزاری که چیری کړې بیزاری مکړه | اوس یُو موړ او ته په خلقو کښ نومړی
چه په لږ ځور دا هونبره ډیر ماڼی کړې | مگر لږ دِی، موړه ستا ځورونه وړی[1]
همیشه دَ حال په ژبه له ما زار کړې | ستا له حاله می هیڅ ندی چا ته سپړی
څوک چه نن کانده وفا له یاره غواړی | ډیر ابله دی چه دَ شگو پړی غړی

آشنایی دَ دین کوَه عبدالقادره
دَ دنیا آشنایان واړه دِی نیمگړی

یار را ځنی لاړ شو، دمه کړم په گفتگو ئې | گل دَ گلاب تیر شو، بوی اخیست شِی له اوبو ئې
نمر وَته نظر کړم چه می یاد دَ آشنا مخ شِی | نوې میاشت به گورم چه را یاد ئې شی آبرو ئې

---

۱. نغړی.

پاس می په تندی کښېږده قدم دَ چنبې گله | سپین نازک په مثل ته ځما دَ یار دَ روئې
یا راغلې دَ یار دَ کوڅې یا راغلې له خلده | اې دَ صبا باده ته چه هسی رنگ خوشبو یې
غم اندوه په بخره دَ هغه چه عاشقان دی | خوښ گرزه زاهده چه له عشقو یې پخشوَی
دوې دی بله نشته، نده دا وینا څرگنده؟[1] | یا به ئې خوله کښېل کړم یا به وینی کړم پرتوی

ستا ده دَ بل نده ځما خوله عبدالقادره
ولی ئې دا هسی دَ حرص په څله ژوېې

هم هغه می دَی دا داغ په ځگر ینښی | چه ئې خال دَی په سپین مخ دَ دلبر ینښی
په قامت دَ مؤذن قیام په څو کړم | ښایسته می په ورانه باندې سر ینښی
دَ لویې په تخت به هغه قدم کښېږدی | چه له سره ئې دَ کبر افسر ینښی
هغه یار په صورت حور، په خوی[2]فریښته دی | مصلحت ته ئې پرې نوم دَ بشر ینښی
دَ هستئ بستر به اور ور څرگندیږی | چه پهلو ئې دَ نیستئ په بستر ینښی
غم هوس ئې دَ بیلتون دَ وصال ټول کړ | پرې ئې نوم دَی دَ جنت دَ سقر ینښی[3]

اې چه په قد سبر، په ښه مخ گلزاره یې | ته پدا ښایست دَ کوُم نیکبخت نگاره یې
سره نمری اغوستی، ولول زلفی سترگی توری | خیر دِ وی بیا دَ چا په تاخت تیاره یې
هیڅوک دِ مخی دَ ښایست نشته په جهان کښ | توبه ستا له یارئ، دَ ډېریو یاره یې
تل دِ دواړه شونډی په نوشل دَ وینو سرې وی | زړه په چا نه سوځې ته یَو څه خونخواره یې
حسن دَی که خیال دَی که دماغ که مکیزونه | ته پدا خویونو په عالم اوڅاره یې
نه می په بل کښلی نظر کړی نه په گل دی | بیا په کوم گناه دا هسی شان آزاره یې

څرنگ به باور ستا په یاری عبدالقادر کا
یَو ساعت می یاره، بیا په بل ویزاره یې

وایم وایم چه چا نه وې بیا به وائی | نن دَ ښو عمل کوَه عمل به بیائی
که په ډېر منبود دولت دَ دنیا ټول کړې | واړه سعی دِ ضایع دَه چه نه پائی
دَ نعمت گټل آسان ساتل ئې گران دی | فهم وکړه چه گټلی نه کړې بائیَ
ځان غبار کړه دَ هغه صبا دَ لاری | چه گذر په کوڅه کا دَ دلبر بائی
دواړه پښې ځما په خوږو سترگو کښېږده | دَ بیمارو سترگو پهی دِی ستا پائی

---

۱. د ده دَه دَ بل نده، چه ده دا وینا څرگنده
۲. په زړه.
۳. مقطع نلَری.

ستا په مینه باور څه عبدالقادر کا
چه هیڅوک در نپوهیږی چه دَ چا ئې

چه حجاب تر منځ ځما ځما دَ رب دَی — اول زه، دوهم عالم، دریم سبب دی
تر شیطان چه لا غلیم ځموږ دَ دین دی — اول نفس، دوهم شیطان، دریم غضب دی
چه سړی پرې دوست دښمن وته غزیز شی — اول حلم، دوهم جود، دریم ادب دَی
دا درې درده خدایه واخلې له دردمنو — اول غوږ، دوهم لیمه، دریم سروب دی
چه دا درې څیزونه پریږدې مراد مومی — اول نوم، دوهم آرام، دریم طرب دی
ودانی دَ کائنات دَه په درې څیزه — اول مږ، دوهم غنم، دریم عنب دی
چه مطلوب ته رسوِی عبدالقادره
اول صدق دوهم شکیب دریم طلب دی

نن می بیا تر بادشاهانو زیات دماغ دی — چه ساقی راته وَلاړ په لاس ایاغ دی
چه ئې داغ دَ غلامئ را باندې کښیښی — افتخار می په دوه کَونه پدا داغ دی
رڼائی ئې نه په نمر نه په سپوږمئ شِی — دَ عاشق دَ غم دَ خونی غم څراغ دی
دَ امید گلونه ژر پژمرده کیږی — چه دایم ترو تازه دی دَ یاس باغ دی
دَ تشویش په تله ئې لا تشویش زیاتیږی — فراغت می دَ خاطر په نه فراغ دی
ښه په ښه باندی مَیَن وی بد په بدُو — طلب گار دَ بازو باز دَ زاغو زاغ دی
چه دَ خولې وعده کوې عبدالقادر ته
دا وَیَل دِ په رشتیا دی که دلاغ دی[1]

چه دا هسی هوښیاری کړې مجنون نه یې — لا په مخ دَ ښایسته وُ مفتون نه یې
بیا به نه مومې وصال دَ الف قدو — چه په مینه کښ لا خم لکه نون نه یې
ستا په سترگو می سوگند دَی خپله یاره — چه یَو دم می له خاطره بیرون نه یې
دَ رقیب وَیَل اثر درباندِی وکړ — مهربانه نن په شان دَ پرون نه یې
عاشق شوی په چا نه یې معلومیږی — چه په غم دَ عاشقانو محزون نه یې
په جذبه دَ عشق می وڅکولې ځان ته — ما موندلَی په تعویذ په افسون نه یې
څو سختی دَ زړه لرې عبدالقادره
هومره تاو دَ عشق زغمه ځنی ستون نه یې

---

۱. دا ویل دِ په رشتیا دی لا دلاغ دی – یا که درواغ دی.

گوره بیا زما تر څنگ لا کله کښېني — چه په ناسته مې لا غم له دله کښېني
چه خندا کا په فریاد دَ فراق جنو — کشکي دی په اور کښې تل د تله کښېني
یَو یو بوټی دَ گل بویه په چمن کښې — چه په ښاخ به ئې شیدا بلبله کښېني
همه واړه ستا دَ مخ ثنا صفت کا — په هر ځای چه کښېلی یَو له بله کښېني
له ادبه درته نه وایم چه مه څه — ښایسته پخپله ځی، پخپله کښېني
هوډیالی دی چه ئې کښېنوم وَلاړ شي — چه په وخت دَ ناستی وایم څمله کښېني

له وصاله دِ محروم عبدالقادر شه
که بې تا ئې په زړه مینه بله کښېني

دا څه خوی دَی ښایسته وُ عادت ستاسی — چه همیش وِی له عاشقه شدت ستاسی
سرومال ښندَل زینت دَ عاشقانو — عنایت، مهر، نمنځه زینت ستاسی
نتیجه ئې نور څه هیڅ نه وی بې سوزه — په معنی کښې لکه اور دَی قریب ستاسی
چه پتنگ غُندی ځان وسوځی ایرې شي — هم هغو ته میسر دَی وصلت ستاسی
دَ حرفونو لوښی تنگ معنی وِی ډیره — په بیان نه ادا کیږی صفت ستاسی
گل څه خاروخس به هم خوشبوئی مومی — که نسیم په سحرا وړی نگهت ستاسی
چه شاعر ئې له څه څیز سَره تشبیه کا — هومره ندی نزاکت لطافت ستاسی
ترحم ئې په احوال څه خو بایده دی — چه وَلاړ دِی شپه او ورځ په خدمت ستاسی

کله توان عبدالقادر لَری دَ شعر
وَیوِی می هومره ډیر محبت ستاسی

حقیقت دَ عشق په خوله ویَلَی نشي — دغه اور بې دله نور سهلی نشي
هسی دروند وری دِ بار په ما ضعیف کړ — چه اسمان ورته خپل ځان نیولی نشي
درسته شپه نارې وهم دَ یار له درده — همسایه می په شپه خوب کوَلی نشي
دَ زړه مست لَره دَ زلفو زنځیر بویه — په اوسپنین زنځیر دا مست تړلی نشي
پدا باغ کښې ډیر گلُونه شگفته شوه — پکښې یَو دَ یار په رنگ لیدلَی نشي
ما دَ یار دَ مخ په باغ کښې دَی لیدلی — چا وې دا چه تور نرگس موندلَی نشي

په هر دم عبدالقادر هسی پیالې څښی
چه یَو گوټ ئې کائنات زغملی نشي

چه فراق کښې دَ گلونو چه گلزار ځی — دَ بلبل تر خوله به تل نارې چیغار ځی
دَ وداع په وخت گرم نه یم که فریاد کړم — روح له تنه آسان نه دِرومی دشوار ځی
په فراق دَ یار دَ سرو شونډُو مَی رنگو — سرې سرې اوښی می له سترگو په رخسار ځی

په دوو سترگو می تیاره شوه نپوهیږم    چه می دُوند[1] دَ سترگو شه که نگار ځی
حال له ډیره غریوه هیڅ ویَلی نشم    خو هم هسی ډکه خوا له یاره یار ځی
په ورو ورو دِ جدایۍ مرگ ته نژدې کړم    لکه ساه چه له صورته په وار وار ځی
دَ عشق اور دَ سوختگانو په زړه لگی    په سوخته تر نور څه ژر شرر دَ نار ځی
پوخ استاد بویه چه زلفی دَ یار نیسی    دَ ناقص پاڼُو دم کله په تور مار ځی
ستا دَ آه لوخړی دِی عبدالقادره
لړی ندی چه په غره وکړه[2] مار ځی

دا څه اور دَی نپوهیږم چه په زړه ځما بلیږی    دا سیلاب له کومه راغَی، چې تر سترگو می چلیږی
نن ځما دَ زړه په ښهر کښ نارې دِی نه پوهیږم    چه می روح له تنه درومی که اشنا له ما بیلیږی
څه پوښتَنه کړې له ما نه چه دَ زړه احوال دِ څه دی    په مثال لکه ماهی دَی چه په تیلو کښ تلیږی
دَ ښه مخ صفت هیچا لکه ئې حق دَی ادا نکړ    واصفان ئې همه واړه دَ هلک غُندِی للیږی
ځکه هسی رنگ بې قدره صبا ور په ور جاروزی    چه په چم دَ دلبر راشی ترې گذر کاندی تیریږی
فریادونه کړه بلبلی وینی ژاړه څو په تا شی    دَ اهاړ سیلۍ راغلې دَ گل پاڼه به تپلیږی[3]
د غم شپه دِ په سبا بدله شوه عبدالقادره
چه جبین ئې لکه نمر تر وربل لاندی در ځلیږی[4]

محبت په تور په سپین راغلی ندی    په اصیل او په کمین راغلی ندی
سل ساله مؤمن کافر، کافر مؤمن کا    په مذهب په کیش په دین راغلی ندی
عشق عطا ده ازلی چه په چا وشی    په ارشاد او په تلقین راغلی ندی
بیهوده په عشق کښ خواست کَوِی د صبر    د دې خواست هرگز آمین راغلی ندی
په راتله ئې ښایسته دَ مځکی مخ شه    پدا شان څوک په زمین راغلی ندی
په دکان دَ عطار هونبره خلق پنډ دی    څو په زلفو عنبرین راغلی ندی
نه تنها عبدالقادر لتا زړه خوړین وړی
څوک لتا چه په زړه خوړین راغلی ندی

نه پوهیږم چه په څه دِ زړه آزار دی    چه دا هسی خپل پردَی له ما نه زار دی
چه دَ زړه جفا ئې وړم ورباندی سپک شوم    گنه کوم سړی له ما نه وفا دار دی

---

۱. دَ دال په پیښ یعنی تاریکی او تیاره.

۲. په مردان کښ د یو غر نوم.

۳. تپیږی.

۴. چه جبین ئې لکه نمر تر تور وربل درته ځلیږی

وئي نن به ازمايش کَوم دَ نورو[1] ښه حاضر ځواب مې کړ بنده تيار دی
له پتنگه محبت دَ شمع ډير دی چه اول ئې په زړه بَل دَ مينې نار دی
په رشتيا وَيل دلگير په دروغ خوښ وی هميشه دَ منافق سړی دا کار دی
عاقل ځکه مقام نکا ترې تيريږی دنيا پل دَ آخرت دارالقرار دی
ننداره مې دَ جهان دَ چمن وکړه په هر دم په چا خزان په چا بهار دی



هيڅ پروا نکړم له چا عبدالقادره
په ښکاره نارې وهم فلانه مې يار دی

څه په سيل دَ باغ لاړ نه يې چه راشې چه مې ووينې له ورايه په خندا شې
زه له شوقه استقبال ته در روان شم ته له ما غاړه غړيه خوا په خوا شې
رنگارنگ دَ باغ ميوې گلونه راوړې ماجرا دَ تلو راتلو وائې گويا شې
که په زړه باندِې مې غم دَ اندوه پروت وی په نفس ئې تار په تار کړې غم ربا شې
زه دِ درسته شپه ځير ځير و مخ ته گورم ته ناظر و خپلو پښو ته له حيا شې
چه خوب درشی سر ځما په زنگون کښيږدې دَ غنچې غنُدی اوده په غيږ ځما شې
زه دِ مخ ته کاته کړم په ورځ ورځ ژاړم چه آخر به يَوه ورځ له ما جدا شې
ځما اوښکې په رخسار د تا پريوزی وينم له خوبه لکه گل په شبنم بيا شې
په رويمال مې اوښکې وچې کړې ډاډ راکړې زه فرياد کړم ته ځما په دلاسا شې
ټينگوې ژړا ځما دَ زړه دَپاره چه غريو زور در باندِې وکا په ژړا شې
زه تر تا لمړی مرگ غواړم ته تر ما نه زه وتا ته، ته و ما ته په دعا شې
هسی ملک لره ځما مَيَنه لاړې چه به کله لا په خوب کښ را نما شې[2]
وی به کله دا ساعت عبدالقادره[3]
چه له ياره مشرف په وصال بيا شې

لکه زه په يار مفتون يَم، بل به نه وِی مفتون هسی لکه زه پسی محزون يم، بل به نه وِی محزون هسی
پرون غيږ په غيږ له ياره نن تر منځ ليری ملکونه دا انصاف دَ زمانې دَی چه نن هسی پرون هسی
په قيامت به هم په هوښ دَ محبت ليونَی نشی چه به روغ شم بې ديدنه ځما ندی جنون هسی
خط پر مخ دَ دلبر راغَی شور دَ زړه په ښهر گډ شو چه د حسن بادشاه ليږدی د دې خط دَی مضمون هسی
آئينه دَ خپل زنگون و ما ته جام جهان نما شوه ځکه سر لَرم تل ينبی دَ فکرت په زنگون هسی
په کاته دَ سترگو زړه وړی په خبرو ځنی صبر دَ جهان په مخ به نه وِی هسی سحر افسون هسی

---

١. په نورو.

٢. لا عجب چه به په خوب کښ

٣. مگر فضل دَ خدای وِی عبدالقادره

دَ دنیا په دښمنی کښ عیسی وخوت و اسمان ته / په دوستی کښ ئې لا ځی تحت الثرئ ته قارون هسی

دَ ژوندون فایده دا ده چه لیده کَوِی دَ کښلیو / چه ئې دا فائده نه وِی، مرگ بهتر تر ژوندون هسی

دا غزل چه په پښتو ژبه بیان عبدالقادر کړه

دروغجن یم که بې خانه وایی بَل یَو پښتون هسی

که په حسن نه دِی دا کښلی ملوکی / ترو ئې ولی هوری حوری شوې مملوکی

دَ عاشق تر زړه ئې ویستې منگلی / دواړه سترگی ئې شاهین باڼه ئې نوکی

دَ بیلتون له دردە هیڅ سړی خلاص ندی / څوک په ورو ورو اشنا ژاړی څوک په کوکی

دَ فراق په نیزو زړه سوری سوری شو / چه ښکاره ئې کړې ویښتو تر زنی څوکی

چه ئې ونه میانه ځموږ دلبر ده / و نور خلقو وته پریښی لنډی بوکی

په جفا ئې صبر کړه عبدالقادره

په جهان کښ کښلی نشته ښې سلوکی

ما هر گز په درست جهان کښ نوری سترگی / لکه ستا لیدَلی ندی توری سترگی

بیهوده په غزاله وُ پسې گرزې! / ځما یار لَره راځه که گورې سترگی

چه فایده ئې دَ ښه مخ لیدلې نه وِی / دَ هغو سړیو ښې دی کوری سترگی

نه دِ شرم شی له پیره نه له میره / ستا په درد به دَ چا نه وِی سپوری سترگی

ثوابت ئې تر نظره سیاره شِی / چه ئې سر وِی گرزیدلی توری سترگی[1]

چه جهان می ئې په سترگو لیده ولاړ شو / نور می خدای کړه له عالمه پوری سترگی

په دیو سترگو به ئې څیر عبدالقادره

نکړې نوری پخپل مخ کړه پوری سترگی

اې په حسن تر همه کښلیو اولی / بیا دِ واخستې ناسازی په لاس ولی؟

په وار وار دَ ډیرو زلفو دَور تیر شو / ستا په مخ به تل پرتې نه وِی ول ولی

دا سبق چه تل له یار سره جفا کړې / راته وُوایه له کومه ملا لولې؟

دَ عشق سر دِ سلامت وِی کښلی ډیر دی / چه سر وِی، په جهان لږ ندی خولیَ

در پوهیږم په خبرو می تیر باسې / چه وَیَلِی شی دا هسی مطولی

لا دَ عشق اومی لری عبدالقادره

چه دَ یار دَ جفا زار کوې یا نخولی

---

۱. چه سړی وِی گرزیدلی توری سترگی

نن سحر سبا نارې وکړې بلبلی دَ بهار زیری کاوه یوې په بلی
دې وې زیرَی می دربانِدی خزان تیر شو بهار راغَی پاڼې ونیولې ولی
وار دَ غم دَ محنت تیر شو خوشحالی کړه دَ غمجنو غنُدِی څه نڼوتلې!
اوس را درومه چه په گلو باندی گنبت کړو لور په لور دَ گل غوټۍ دی غوړیدلی
ویې تا دَ بهار غم لیدلَی ندَی هم بهار په ما لمبې ولگوَلې
دَ خزان دَ بهار ورځی راته یَو شوې چه می دواړه تیریدونی وگڼلې
له دې ورُوسته به پسرلَی په ځان خزان کړم دَ خزان خوښۍ می زیاتی وَلیدلې
خوشحالی به لکه زهر در ښکاره شی که دَ غم پیالې دِ یَو ځلی وڅښلې
نصیحت عبدالقادره ځنی واخله
دا وینا بلبلو تا وته وَیلې

خود کرده به ماڼه کا له نورُو ولی ده پخپله پخپل ځان کړې لمبې بلی
که مقصود ته رسیده په عنایت شی ولی نه بویه سستی له سعی ځلی
یَو زه نه یم چه فریاد کړم ستا له جوره ستا له جوره دَ عالم سینې دِی جلی
دَ عاشق کمال سوځل دِی ډیر ښه وشول چه پتنگ دَ عشق په اور شو جلی بلی
په وصال ئې یا نصیب څوک مشرف شِی دَ وگړی پسی وختلې تلی
شیخه نور ځما توبه یاری به نکړم په دعا وُ که یار بیا مومم دا ځلی
دَ موندو وسواس ئې مکوَه طالبه که دِ پینې دَ طلب ندِی دواړه شلی
په دوه کَونه به سرلور عبدالقادر شی
که ئې وینی شِی دَ یار له لاسه تلی

چه وباسی له خاطره نوری باتی هم هغه به ئې مخ کا سترگی لواتی
چه ئې نه په نورو خوری نه ئې پځان خوری عاقبت شی دَ هغو خونی میراتی
ربه مرگ دَ خاکسارانو عُندی راکړې چه وارث ته می سپیرې ایرې شی پاتی
تابیانو بیا توبې کړې چه دلبری توری زلفی په سپین مخ کرې ماتی ماتی
د هر څیز رجوع و خپل اصل ته کیږی ځکه درومی و بدذات لَره بدذاتی
منی نه شی په درگاه د دلربانو
که ورځی عبدالقادر په ننواتی

اې له سترگو بیارته، هر زمان زړه ته حاضری نه لتا زه لیری یم، نه ته لمانه لیری
قراری آرام ئې ورک شِی تل تر تله چه په زړه ئې ستا دَ غم شیتۍ شی سَرِی
شونډی ستا لکه نبات هسی خوږې دی تریخ وَیَل ځنی نه ښایی لب شکری
که می سیخ په سترگو ښخ کا خدای دِ نکا چه به سترگی کړم لتا نه لری بری

دَ ښځو سیوره دِ خار په ښځو څرخیږی  —  له حیا چه کوز کوز گورې ناز پروری
دَ خطا دَ ملک نافې واړه خجل شی  —  باد چه ستا دَ زلفو خپور شی معنبری
وچ لانده عبدالقادر دَ جهان پریښول
ورته بس دی وچی شونډی سترگی تری

لا دِ یَو مانې زوړ نه وی نَوی بیا کړې  —  څه ئې غم لَره ځما سَره آشنا کړې
یَو زمان را سَره نه یې بې جفا نه  —  په هر دم را سره سل رنگه جفا کړې
نه دِ ویره شی له آهه نه شرمیږې  —  په هر څه چه زه پخیږم هغه لا کړې
له اغیاره سَره ناست یې په مجلس کښ  —  چه ما وَوینې روان شې راته شا کړې
وایم مه خانده بل چا سره زه سوځم  —  ته ځما له کسته لا زیاته خندا کړې
هم می خوږ په تیره تیغ دَ تغافل کړې  —  بیا وَیَل کړې له نا خواله چه خوږ چا کړې
په ترخه وَیل می کله زړگی ښه کړه  —  که په ښو خوږو خبرُو عار له ما کړې
چه په ژمنه دَ راتللو دروغجن یې  —  دا دَ راتلو وعده ولی رشتیا کړې
بې تا نه وینم په سترگو لا به کله  —  په لیدو ځما ړندې سترگی بینا کړې
یَو ځل راشه ځما خوار کرَه میلمه شه  —  چه په راغله می دَ غم خونه رڼا کړې
چه دَ مینی دعوا کړې عبدالقادره
بویه دا چه ترکه خپله مدعا کړې

زه که په رنگ بد یم کښلیه عار ولی له ما کړې  —  چاری دَ قسمت دِی زه ئې زشت ته ئې زیبا کړې
یَو ځله بیا راشه په گلونو گذر وکړه  —  اې دَ صبا باده چه بیا نغښتې غنچه وا کړې
گل دِ په هجران کښ سل پاره خپله ټټر کړه  —  سرې دِ له فراقه لاله سترگی په ژړا کړې
ولی له شیدا بلبلی، مخ جار باسې گله!  —  ته پدا خوبیِ هم دَ ده نارو رسوا کړې
لا خوشبوئی ورکا، عود چه واچوې واورته  —  زه به وفا زیاته کړم که ته زیاته جفا کړې
ته دَ حسن نمر یې دا نور کښلی لکه ستوری  —  کل به کالعدم شِی که ښکاره خپله لقا کړې
تل لباسی وایې، دروغجن عبدالقادر ته
کشکی بل تر ده نه مخلص یار چیری پیدا کړې

بیا دِ زلفی په فلیلو سَره تر کړې  —  کوم نیکبخت وِی چه په غیږ ئې معطر کړې
لږ نظر می په حال کړه ذره مثال یم  —  پدا شکر چه ئې ته دَ حسن نمر کړې
باده گرز ئې دَ کوڅې را لَره راوړه  —  چه محلت می په عنبرُو معنبر کړې
شکر خدای له چه ئې ته سر کړې دَ کښلیو  —  بیا له پسه ئې ځما دَ زړگی سر کړې
بوی به ستا دَ محبت ځنی روان شِی  —  که پاره می دَ نافې په دود ټټر کړې
په نازکو شونډو بار دَ پاڼو مږده  —  خدای چه شونډی تا ته سرې بې پاڼو درکړې

صنوبر غُندی پرې زڼُونه آویزاند شول
په ښه قد ئې په مثال دَ صنوبر کړې
سره هاله یې سودمن عبدالقادر ته
که په تور دَ محبت ئې چرته ورکړې

لا به کله باران وکړې، چه به سوی بوټې شنه کړې
ستا وَ رحم وته گوری، په کریابو رحم وکړې!
په درگاه درته پراته دی، هم لتا نه په غوښته دی
ستا وَ داد ته ئې کاته دِی، پخپل داد ئې زڼُونه ښه کړې
نامراد که په مراد وِی، که ښادمن وِی که ناښاد وِی
واړه تا ته په فریاد دِی، دَ هموُ زیرمه ته کړې
مسلمان که کافران دی، عاصیان که مطیعان دِی:
رزق خوړونی ستا دَ خوان دَی، رزق له هیچا دریغ نکړې
زیږوې چه اور له خسه، ورځ پیدا دَ شپې له نسه
ښکاره شهد له مگسه، په قدرت وینی شوده کړې
چه په چا نشی پتا شی، چه په تا کیږِی په چا شِی؟
په حیرت ورته دانا شی، ربه هسی رنگه کړه کړې
زه عبدالقادر بد کار یم، معصیت کړم گنه گار یم
بیا لتا نه امید وار یم، پخپل فضل می زړه ښه کړې[۱]

ته چه دواړه سترگی توری په کجل کړې
توری سترگی دَ کشمیر واړه خجل کړې
دَ چوړا آواز دِ لا عقل ربای دی
څه حاجت چه په داریا کښی جلاجل کړې
خاوری شوی گلرخان می زړه را یاد کا
نن نارې دَ نو بهار په گلو جل کړې[۲]
گله کشکی پدا باغ راغلی نه وی
ځما زړه به دَ فراق په لمبو جل کړې
لکه څوک دَ لاله زار په سیل درومی
وسره اور ته به درځم که ئې بورجل کړې
دَ هوا لړی دِ پریوتې په سترگو
چه په هسی سَمَه لار کښ ئې ارجل لړې
هَره ورځ عبدالقادره نصیحت کا
که ته غوږ په وعظ کړونیو دَ اجل کړې

چه یَو ځل ئې دَ غمزې په تیغ زخمی کړې
له احواله دې بیا ولی بې غمی کړې
ستا په راغله می دَ خوږ زړگی روغتیا شی
په خالی راتلَنه هسی بې رحمی کړې
یَوه ورځ به دِ زړه تور کاندی له ما نه
چه غماز سَره دا هسی محرمی کړې
ځما زړه لکه غمی وُ دَ یاقوتو
دَ ازل نقاش ته لیک پدا غمی کړې
شیخه درغلم سرې شونډِی سترگی توری
راته څو دَ پارسایئ محکمی کړې
په هر دم دِ منت بار یم دَ یار غمه
چه له دم سَره می هسی همدمی کړې
ته رشتینې ئې هاله عبدالقادره!
که په عشق کښ می اختیاره بدنامی کړې

---

۱. می ښه زړه کړې.

۲. په دې بیت کښ جَل د یوه ښه ږغی مرغه نوم دَی په دوهم بیت کښ جَل یعنی سَوی.

دا چه نور ښایسته ما ته یادَوېدر پوهیږم بیا ستم بنیادَوې
بې له دې چه مدعی یم ستا دَ مینی نور به کوُم گناه و ما ته زبادَوې
چیری نه وِی چه ما هم در سره خلاص کړې چا وې نن چه خپل بندیان آزادَوې
انتظار ئې دَ ښادئ اندوه دوتا کړ لا به کله اندوهگین دَلښادَوې
چه آخر ئې بیا هم ته په مځکه توی کړې باده گل دَ چمن ولی کشادَوې
په خالی فریاد به هیڅوک فرهاد نشِی تر ځان تیر شه که خپل ځان فرهادَوې
چه خبر په حقیقت دَ علم نه ئې! په لږ علم ځکه ځان اوستادَوې
لږ جحاب عبدلقادر ته دَ مخ واخله
که بنیاد ئې دَ هستئ بربادَوې

چه دا هسی رنگ په نغته دَ خپل نَس شوې ځکه بند دَ غافلئ په قفس شوې
شاه بازان په دغه جال کنبیوتی نشِی دَ غتې په جالو بند لکه مگس شوې
چه هوا دِ غورَزوِی هورې ته درومې بې وقاره په څو سپک تر خاورُو خس شوې
که په اور دَ محبت خپسره وسوې له غه پسه به ژوندَی لکه ککنس شوې
چه دِ وپوښتی څوک هاله څه ووایه بې هنگامه ویاند څه لکه جرس شوې
که وړاندی غواړې ځان کم گڼه تر بله هم به هاله پیښبی بیا مومې که پس شوې
چه اسره دِ وُکسان هاله دِ غم وُ
هوَس کړه عبدالقادره چه بیکس شوې

ربه ستا قدرت کمال دَی که کرم کړې وران کارونه می به ساز په یَوَه دم کړې
څه یم زه، څه می مقصود څه ځما کار دی په زمان پوره کارُونه دَ عالم کړې
لکه غر په سر ئې بِدی لکه خس اخلی سپک درانه کارُونه واړه سره سم کړې
دَ همه چارو اسباب درته موجود دی شاه گدای، بادشاه گدای دَ لوی حشم کړې
په قدرت هسی نور یو سې له آفتابه ستوری وبریښبی غرمه جهان تور تم کړې
ډیر ښادمن په عشرت درسته شپه کارُونه په سبا ئې دَ عشرت په ځای ماتم کړې
شپه له ورځی را پیدا کړې ورځ له شپې نه
و مرده ته ورکړې دم ژوندی بې دم کړې

حال می تا وته معلوم دَی ته می وینې چه ژوندون می دَی دَ خپل میَیَن په مینی
عشق می ځای په رگ او پلو کښ ځما وینو ترې به ووَزی هاله، چه ووزی وینی
دا زهوب ځما دَ زړه له داغه درومی که می سرې اوښی له سترگو څِی که سپینی
چه دنَنه زړه ئې خوږ شی زړه مې خوږ شی چه خبر به شې ځما له سینې خوړینی
چه صفت دَ کوثر کاندی رنځوران دی ستا له خولې لاړی تر هر څه دِی شیرینی

ملوکان ئې هيڅ له قدره خبر نشول — تر ململ دی، عباری جامې مهینی
په کوړ کوړ کاته ئې شيخه غلط مشه — سل فتنې لَړِ لا سترگی شرمگينی
دَ نگاه په تيغ دِ غُڅ عبدالقادر کړ
پرې مرهم دَ شونډو کښېږده زړه سنگينی

چه په واړه کښلیو بَر دی — هم هغه ځما دلبر دی
برخوردار به ځنی ډير شی — سر تر پايه واړه بَر دَی
مخ ئې بر شونډې ئې لعل — قد ئې سبر سمنبر دی
چه قانع په خشک و تر شی — هغه شاه دَ بحرو بر دی
چه په بدو باندِې ښه کا
هغه وګړه چه بر دی

پښتانه کوته انديش دی — سود غليم ته زيان دَ خويش دی
نوشدارو پکښې ناياب دی — واړه زهر، واړه نيش دی
حريصان، طالع، سترگ وږی — په بدخوی مالگه دَ ريش دی
ملکان ئې آدم کش دی — کفر کشی کا چه درويش دی
پير مرشد ئې جهالت دی
نه په دين دی نه په کيش دی

اشتياق دَ ليدو ډير دی — دَ بيان تر حده تير دی
دا گمان کړه له زړه ليری — چه مې يار له دله هير دی
زړه مې غوڅ کا صورت روغ دی — دَ هجران عجب شمشير دی
که ژوندُون تر هر څه خوږ دی — په ما زهر يا گنډير دی
هوس نه پريږدِی چه ورشی — دَ غم کوټ تر زړه چاپير دی
کشمير هم په مهجورانو — رنتهبور او گوالير دی
دَ زړه سوِی دَی چه بې ياره
په کرک يا په بونير دی

که هر څو ئې دَ دنيا دولت ډيريږی — څه په کار چه بقا نلَری تيريږی
بادشاهی دَ اورنگ زيب و آزاده ته — ځه تل نه وی په خسړی نه پيريږی
چه يَو دم مې له خاطره جدا نه وه — دم په دم مې اوس هغه ياران هيريږی
عجيب وار دَ ناپوهیٔ دَ ځوانیٔ وُ — په سړو گرمی اوس دواړه ازمائيږی
تللی عمر هرگز نه راځی په بيارته — که دَ اوُښکو په ځای تل وينی بهيږی

دَ بانړو ناوک ئې هسی په ځان لک دی چه ئې زخم په دارو وُ نه رغیږی
که هغه وارؤ که دا عبدالقادره
ننداره کوَه چه څه رنګه تیریږی

دَ اجل راتله سرِی ته بَغتَةً دی ناګهانه بیلیدل دَ روح او تن دی
ګنُدی وی چه سره بیا په یَوه ځای شو په هغو زموږ سلام چه په وطن دی
په سبا به ئې باد ګوره چرته یو سِی دا ګلؤنه چه نن ورځ په شګفتن دی
دا خندا ژړا می خوی دَ لیونی دی چه هوښیار دِی همیشه په ګریستن دی
هر ګدای چه آزاده وِی تر قربان شه بادشاهان دَ روم دَ هند که دَ ختن دی
ماتَول دَ بت آسان دی مردان کوُم دی چه مشغول دَ خپل وجود په شکستن دی
نن نسیم عبدالقادر ته سحر وَوِې
بوی ئې واخله دا ګلؤنه په رفتن دی

چو زلف عنبرین را پیچ و خم کردی کرم کردی دلم را از سر نو بند غم کردی کرم کردی
چو بکشودی نقاب از رخ نمودی عارض زیبا شب اندوه ما را صحبدم کردی کرم کردی
بحمدالله چو قتلم را بدیگر کس نفرمودی سرم را چون بدست خود قلم کردی کرم کردی
بروی عاشقان زار عمرت در فزون بادا جفاها گفتی و جور و ستم کردی کرم کردی
سراسر محنت و غم بود در ملک وجود ما
چو بازم ساکن ملک عدم کردی کرم کردی

دَ زړګی می له اندوهه څه اندوه دی په سیلئ جنبش دَ کاه شی نه دَ کوه دی
خالی لاس وته او زړه ئې ډک له مینی بې پیونده آزاده عجب ګروه دی
دَ فقیر له غمه څه چه غمجن اوسی په زړګی دَ دنیا دارُو غم انبوه دی
چه خبر ئې شی له مکره ځنی تښتی دَ دنیا یاری یاری مګڼه دروه دی[1]

---

۱. مقطع نلَری.

# رباعيات

## (الف)

(۱)

زړه مې له رشکه هر ګوره درد کا — چه کږې چارې فلک کج ګرد کا
ځوانمردان ناست وي آهونه سرد کا — ذوق او هوس دَ دنيا نامرد کا

(۲)

په ډېر هوس ئې سره آشنا کا — په درد او دوک ئې ځبله جدا کا
چه دا احوال دَې پدا دنيا کښ — څوک به څه مينه دَ زړه په چا کا

(۳)

سړې هر ګوره طمع دراز کا — چه روته نه رسې، هسې آغاز کا
په څلويښت کاله کم زيات چينې شي — پلار ئې خمير کا، نمسې ئې ساز کا

(٤)

چه په نابوده دنيا اعتبار کا — دَ پښيمانئ ژړا بار بار کا
چه لږ غبار دې په خاطر نه پسندې — هغه به خاورې په تا انبار کا

(٥)

ساقي را پاځه ګل غوړيدَنه کا — لغړه ونه به بهار ژرګنه کا
که روکه نه وې چه شراب راوړې — صوفي به خپله خرقه ګهنړه[1] کا

(٦)

که مځکه خپله ګيډه پاره کا — حال دَ نغړليو ورته ښکاره کا
خوب او خوراک به له خلقه ولاړ شي — تمام جهان به يَوه ناره کا

(٧)

ذکر هغه دَې چه ذاکر فرد کا — دننه زړه ئې ذکر په درد کا
که مَې دَ ذکر باندِې غالب شي — دواړه جهانه ورباندې سرد کا

(۸)

نن کانده چرخ عجب سانګونه کا — چرګان ککړې چرګې بانګونه کا
له مستۍ واز دې تر وړې ګيدړ نه خورې — لوړې په غاښ مزرې پړانګونه کا

---

۱. زيور.

(۹)

ناراسته ښځه غنم اوربشی کا — لا تر بیځانکیو[1] اوربشی تشی کا

پیشو ترې پی ځتی دا ورته گوری — هومره پرې نشی چه پیشو پیشی کا

(۱۰)

هوښیار چه ناست وِی ناپوه خبری کا — سپی دی ټمیرِی څوک دِې کوری کا

چه څوک ئې نه پوښتی خاموښ دِ اوسی — که هر څو توئی دَ خولې شکری کا

(ت)

(۱۱)

مکړه هیچا ته گله له بختَ — مراد نه مومی هیڅوک بې وختَ

شکر وگاړه په هر احوال کښ — بلا ئې لا ده تر بلا سختَ

(د)

(۱۲)

ستا په دوران کښ اې بې بنیادَ — نامراد بهتر دَی تر بامرادَ

په خندا ورکړې، په ژړا واخلې — ځموږ توبه شه له هسی دادَ

(۱۳)

اې د بې زادو دَ لاری زادَ — دَ نامرادو دَ زړونو مرادَا!

محتاج می مکړه دَ بل وَ ورته — راکړه و ما ته له خپله دادَ

(۱٤)

اې چه په مخ وړې خوبی له وردَ — خالی یَو دم نه یم د تا له دردَ

ته بې آسیبه، بهی سیب اوسې — که تر نارنج می چهره ده زردَ

(ر)

(۱۵)

چه بې تا پایم بیل شویه یارَا! — ژوندون هر گور دَی په ما دشوارَ

ډیر به په غم کښ دَ اشنا مړه وُ — که سړی مړلَی بې خپله وارَ

(۱٦)

څه زده بې نیازو د تا په قدر — سپی لا غپا کا چه میاشت شی بدر

که کښلی واړه لکه گلونه شی — ته دِ گلاب یې، نور کل دَ بدر[2]

---

۱. دا کلمه کټ مټ ولیکله سوه.

۲. په پښتو کښ و چنار ته وایی.

(۱۷)

په چا چه مهر کړې په چا چه قهر زهر پازهر کړې، پازهر زهر
بحرو برد واړه د تا په حکم دی په بټ ئې لار کړې، په بط ئې نهر

(ز)

(۱۸)

په زړه مزریه په سترگو بازَ له نازه ډکه خالی له نیازَ
تر تا لا کښلی فلک بدرنگ کړه زنهار پخپله خوبی مه نازَ!

(ش)

(۱۹)

درد دِ مه وینم ساقی مهوشَ په شونډو میه په مخ آتشَ
له خاصه خُمه خاص مَی را نوش کړه زړگی می خلاص کړه له غل و غشَ

(ښ)

(۲۰)

ښکاریږِی تا ته دنیا په سخ کښ څو څو بناوی لرې په مخ کښ
په کاڼی وکا، اثر خبره تأثیر هیڅ نکا په ساړه سمخ کښ

(ع)

(۲۱)

ځوانمرد هغه دَی چه لکه شمع دَ ځان په سولو مجلس کا جمع
دَ بل دَپاره که په خندا وِی په مخ ئې درومی باران دَ دمع

(ل)

(۲۲)

سپین می دَ ږیری په تورُو زور شول زړونه دَ کښلیو را ځنی تور شول
چه په ځوانی کښ ځما په فخر شه هغه کارُونه می اوس پیغور شول

(۲۳)

هر چه له ځانه سَره ښه می لیدَل زویه که ورونه واړه می ولیدل
ښه په هیچا نشی نفسا نفسی ده ما خپل بې خدایه هیڅوک و نه لیدل

(م)

(٢٤)

ځکه له درده ځبله ښورم — باران دَ وينو له سترګو وورم
وار مې دَ کښلیو دَ لیدو تیر شه — چه خال و خط ئې په لیمو ګورم

(٢٥)

زه پخپل ملک خو يَو خپل زړه لَرم — هم هغه مات دَی چه روغ ئې نه لَرم
که دِ پکار دَی درته پیښکښ دی — دریغ ئې خدای مکړه چه له تا زه لَرم

(٢٦)

دَ یار له غمه خالي يَو دم نه يم — هيڅ ساعت نشته چه په ماتم نه يم
په زړه مې زخم په زخم کیږی — که آه فریاد کړم و ګړیه ګرَم نه يم

(٢٧)

الله مې رب دَی زه ئې مربوب يم — بنده دَ ده يم که خوب ناخوب يم
غرق په اوبو کښ کله اوبه وينی — نعمت ئې نه وينم په نعمت ډُوب يم

(٢٨)

په څو به ياره له تا نه صبر کړم — يا مې به يار شې يا به ځای قبر کړم
عشق مې په مثل دَ خونی ببر دی — زړه تا په خوله کښ دَ خونی ببر کړم

(٢٩)

زوړ کړم غمونو دَ اشنا زوړ کړم — له کل هوَسه ئې دَ دنيا سوړ کړم
څو څو تاوُنه را باندی تير شول — نَو مې ئې وچ کړ، هجران نخوړ کړم

(٣٠)

زه هسی نه وايم چه نيکو کار يم — شيخ يم، عالم يم، يا پرهيزګار يم
ته په ويَلو ځما ځان پاک کړه — زه که ناپاک يم کنده مردار يم

(٣١)

بد يم دا نه وايم چه زه ښاغلی يم — په مرَيی والی د تا داغلی يم
مرګ مې قبول دَی شَرِل دِ نه وی — تښتی بنده يم درته راغلی يم

(٣٢)

که نور څه ندی چه مريَی ستا نومم — بس دَی و ما ته، چيری لتا دروَمم
ته به ځما غُندی مريُونه ډير مومې — کله به تا غُندِی څښتن زه بيا مومم

(٣٣)

که هر څو خوږ يم دردمن په زړه يم — قوت مې لږ دَی، دَ ځواب نه يم
چه يار مې وپوښتی وايه څه حال لرې — ځواب ئې ورکړم، وايم چه ښه يم

(۳٤)

دَ یار له غمه په زړه افگار یم　　له غمه څه وایم، دردمن یم خوار یم
په زړه دردمن یم، هر گور بیمار یم　　افگار یم، خوار یم، بیمار یم، زار یم

(۳۵)

خلقو گرم نه یم، که وینی وورم　　شپه ورځ له درده و بله ښورم
محروم له کښلیو له نندارو شوم　　چه سترگی کښیږدم خال و خط گورم[1]

(۳٦)

که مینی گول کړم عالم نه پیژنم　　بیا تر عالمه آشنا ښه پیژنم
دا آشنا ندی دَ آشنا رنگ لری　　که آشنا راشی آشنا زه پیژنم

(و)

(۳۷)

دَ جدایئ مدت دِ ډیر شو　　زیات تر حسابه تر شماره تیر شو
هیر شی له دله چه ولاړ له سترگو شی　　نوم می دِ یاد دَی، رنگ می دِ هیر شو

(۳۸)

چه باوجود دَ پیریَ مرید شو　　صدیقؓ تر نورو ځکه مزید شو
عمر ئې تیر کړ په عبادت کښ　　په لږگی کبر ابلیس مرَید شو

(۳۹)

دَ غم لښکر می تر زړه چاپیر شو　　خلاصی می نشی اوس پکښ گیر شو
سرای دَ غمونو دَی څه شو که یَو ځل　　دَ خوشحالئ کاروان پرې تیر شو

(٤۰)

چه تنکئ لښته وې وخت دَ نمای وُ　　هر حرکت دِ ځما په رای وُ
چه ښاخ شوې شوخ شوې تبر ترښځ غواړې　　محنت می واړه ضائع بې ځای وُ

(٤۱)

په اَورادونو دَ څلور قلو　　غواړم له خدایه فرصت دَ گلو
صحت دَ ځان دَ یارانو واړه　　کښلې دلبره، ښیښه دَ ملو

(٤۲)

صد دِ وُوینم په سترگو تورو　　په خوله ځما یې، په زړه دَ نورو
غوږ دِ په نورو یارانو وخوړل　　زه دِ غلط کړم په کیسو سپورو

---

۱. چه چشمې کښیږدم.

(٤٣)

حسد په زړه کښ دَ بې حسدو — اور دَی ترې بویه حذر بخردو
چه له مقبولو سَرَه دښنی کا — هغه سړی دَی په شمار دَ ردو

(٤٤)

فخر لوئی کا، خلق په بدو — په بد خصلت شول بتر تر ددو
رد شول رسمؤنه کا شرع ئې پریښوه — ربه ما مکړې په شمار دَ ردو

(٤٥)

بندی په تار یم دَ دوو زلفینو — مست ئې په جام یم دَ دوو عینینو
دَ طهور مَی به، باندِی ترخه لگی — نوش ئې چه مَی کړل دَ شفتینو

(٤٦)

لاړم و باغ ته په نیت دَ گاو — دَ پریکولو، آواز بلبلو:
وکړ دستې می له لاسه پریوتې — هسی رنگ مست شوم لکه په ملو

(٤٧)

ژبه عادت کړه په ښو خبرو — خبری ښې دِی، ښې تر شکرو
دَ خوند مثال ئې شکری وایم — قدر ئې ډیر دَی تر مرغلرو

(٤٨)

نسیم چه راوړ دَ باغ په گلو — بوی دَ دلبرو دَ ښو کاکلو
له هغه بویه هم گل بوی دار شو — هم باندی وکړه مینه بلبلو

(٤٩)

ډک می دنَنه لړمون په اور شو — زړه سمدر دی پکښ ئې کور شو
چه ستا دَ تورُو زلفو په رنگ دی — له بخته خوښ یم، چه بخت می تور شو

(٥٠)

مکړه وکړه سامان دَ تللو — پخوا تر هغه چه د بللو:
استواخې راشی چه اوس را درومه — وخت دَ حساب دَی وخت دَ تَللو

(٥١)

له خپله بخته و چا ته زار کړو — دَ څرخ ناسازی و چا ته شمار کړو
ډک دَی دَ کښلیو دَ کابل ښهر — هومره څه نشته چه یو ترې یار کړو

(٥٢)

څه زده په قدر دَ لعلو کورو — زه دِ قربان شم تر سترگو تورو
که کښلی جمع دَ درست جهان شی — ته دِ څما یې، نوری دَ نورو

(٥٣)

که عقل پوهه، که تیغ که دیگ وُ — په پښتانه کښ دَ خوشحال بیگ وُ
زر ئې همت وته په شمار دَ سلو وُ — زر ئې سخا ته دَ صحرا ریگ وُ

(٥٤)

که ښه خوراک وُ، خوراک هم ډير وشو
که ښه پوشاک وُ، پوشاک هم ډير وشو
ربه اوس راکړې دَ دين خوښئ
که ډير ژواک ښه وُ، ډير ژواک هم ډير وشو

(٥٥)

بَل مې په زړه کښ دَ مينې اور شو
ځکه فرياد کړم روزگار مې شور شو
دَ يار دَ سترگو سياهي پريوته
دَ صبر صاد مې په سترگو کور شو

(٥٦)

عمر تير شو واړه په لهو
بدی په قصد کړم نيکی په سهر
تف پدا عقل لکه ځما دی
جنون بهتر دَی تر هسی صحر

(٥٧)

خندا هوس شِی له جاهلانو
حزن اندوه شی له عاقلانو
که لږ بيدار شی خونی به ورانی کا
جهان ودان دَی په غافلانو

(٥٨)

له کښيه وچاوده وخت دَ سبا شو
په هر مسجد کښ اذان ادا شو
راشه چه کښل دِ کړم اوس به بيليږو
په ځان ځموږه سبا بلا شو

(٥٩)

ځوانی چه ولاړه بيا نه ځوانيږم
ويجاړ شوۀ بويه چه ودانيږو
په مخ استواځِی دَ طلب راغله
تاسی خدای ښه ساته موږ روانيږو

(٦٠)

غم پرې هر گوره دَ جهان زور شو
دنَه زړه مې را ښخه خپور شو
راغله ناگاهه په آشنا کليو
کلی هغه دِی عالم پرې نور شو

(هـ)

(٦١)

دا پند له ما نه په زړه کښ ياد کړه
ښو دِ لاس رسی مروت داد کړه
زړونه دَ هر چا په احسان ښاد کړه
آزاد بندَه کړه، بنده آزاد کړه

(٦٢)

ربه په کار مې دَ نيکو کار وکړه
په دوی مې عفوه دَ پرهيزگار وکړه
عمل دَ نيکو را ځنی وَ نه شو
ځوانی مې تيره په خوشيو چارُو کړه

(٦٣)

په مجلس کښ بيرون له همه
دَا آواز وخوت دَ خُم له فمه
چه زه هم ستاسِی ميخور زلمَی وم
ځما له حاله مشَی بې غمه

(٦٤)

شابښ او شابښ محبوبه تا لره — راغلې پخپله دَ عاشق خوا لَره
دَ عاشقانو نمنځنه ښه کوَه — خدای دِ تر ډیره په دا دنیا لَره

(٦٥)

واروه دا پند دَ هوښیار وروره — تل ئې دَ زړه په غوږی ژغوره
دَ هر کار وخت شته خبره ځای لری — وار خطا مکړه، وَ وار ته گوره!

(٦٦)

دَ میرو میره دَ خانو خانه — دَ جهانیانو، جان او جهانه
دا رنگ لوئی به هاله روزی کړې — که وې نیک نیته او نیکزبانه

(٦٧)

دریغه دریغه واژگون گردونه — د ښی له مرد کړې خپلوی له دونه
په نا اهلانو باندِی عنبر لونې — لونې په اهلو باندِی گردونه

(٦٨)

په وخت دَ گلو او د گلونه — ځای ئې کاوه شی دَ زړه د تنه
چه بهار تیر شِی خزان پرې راشی — هسی رنگ سوه شی لکه څوک غنه[1]

(٦٩)

راشه راشه ښایسته راشه — ځما دَ غم دَ جونکړیَ رڼا شه
په هغی لاری چه ته را تللې — دَ هغې لاری بلا په ما شه

(٧٠)

پیر می چه حل ئې واړه اِشکال اوسه — په دواړه کَونه خورم خوشحال اوسه
دا نصیحت ئې راته همیش وایه — چه خوښ له خدایه په هر احوال اوسه

(٧١)

چه حاضر نه وِی ورځنی ښه وایه — که هر څو بد وِی ورته لیمه وایه
که لږ ډیر عیب په یار کښ وَوینې — چه مخامخ شِی ورته ئې وَوایه

(٧٢)

مَیَن را یاد شو د تا له رنگه — که یَو درنگ کښینې ځما تر څنگه
که اشنا نه یې، دَ اشنا مثال لرې — ځار شم قربان شم تر تا ملنگه

(٧٣)

مشه چه جاه ئې په افزونی شه — سفله فرعون یا قارونی شه
دَ مردگانو په غوښو مست وی — ورځنی ځان ساتی گیدړ خونی شه

---

۱. دَ اغزنی ونی وچ ښاخ.

(۷٤)

ارمان ارمان دَی کجرَ و فلکه! عین په زړه ده دَ هر چا لکه

ستا له گردشه خونه دِ ورانه شه دَ جدایيِ تیره گزلکه

(۷۵)

فریاد فریاد دَی له هغه دمه چه را ښکاره شِی اجل له همه

ما به یَواځی روان کا گور لره په ډیر ارمان او په ډیر المه

(۷٦)

بیلتون دِ سخت دَی په ما تر نازه پکښ وریتیږم دَ خدای دَ پاره

یَو دم له ما نه مه جدا کیږه تر تا قربان شم مَینه یاره

(۷۷)

ثنا دَ گل شِی له کښلیه بویه صفت دَ مرد شِی له نیکه خویه

اهل به نکا ستایَنَه هیچیری دَ گل له رنگه، د مرد له رویه

(۷۸)

خواره حیرانه بنی آدمه صورت دِ روغ دَی تمام له غمه

ژوندَی غمجن یې، مړَی غمجن یې راغلَی مه وَی کاش له عدمه

(۷۹)

هر څوک چه یَو کا زړه خوله خپل دواړه دوهم په نیت شِی ثابت له واره

که کمَی وَرغَی په دین دنیا کښ تاوان ئې واړه ځما په غاړه

(۸۰)

ناپوه به وائی مینه آسانه ده چه مینه کاندِی مینه ئې ورانه ده

په نام و ننگ کښ دَ سر ښندَنه شِی دَ نام و ننگه وتنه گرانه ده

(۸۱)

چه دا ناسازی دَ څرخ زغمونه لړمون مو درست شو سَره کرمونه

یَو دِ جدا کړو له خپله ملکه بل دِ را پیښ کړه دَ عشق غمونه

(۸۲)

چه می به طمعه دَ دنیا چا ته شوه له همه واړو په وار وار ماته شوه

اسرې دَ خپلو پرَدیو پاته شوې اوس می یَو اځِی اسره و تاته شوه

(۸۳)

مینه څو رنگه مزه لرینه خود به پوهیږی چه ئې کوینه

کله تر واړو ترخو ترخه شی که تر واړُو خوږو شیرینه

(۸٤)

که ډیر څه درکا وربانَدِی مه ویاړه له خدایه نور څه بې خدایه مې غواړه

ژړا دَ قرب ژړا دَ بعد ده وَ خدای ته ژاړه، له خدایه مه ژاړه

(۸۵)

که هر څو خوږې دَ کبنلیو نازه | تریخ شې چه کړ شې زیان تر اندازه
که په لذت کښ شکری ښې دی | په ډیر خوراک کا بلا در سازه

(۸٦)

په لاری تللَم په مخه راغله | په مخ تر گله ښایسته آغله[1]
داغ ئې بیا نوَی را باندی کښیښ | څما خاطره! پیدا یې داغ له

(۸۷)

هیڅ نه پوهیږم دا څه بلا ده | چه لگیا شوې په زړه څما ده
لړمون می سوځی قراری نشی | اور دَی که مینه دَ دلربا دَه

(۸۸)

ربه دَ لطف نظر و ماته کړه | بې تا می مینه له هر څه ما ته کړه
چه صورتونه ځنی پیدا شی | نظر دَ مهر په ښاځکی ما ته کړه

(۸۹)

لکه اروا ځی دَ چا له ځانه | چه جدا کیږِی یاران له ما نه
هسی ساعت خو بلکه تردانه | په ما لا سخت دی لیری له تا نه

(۹۰)

ربه له غیرو چارُو می وژغوره | باران دَ فضل را باندِی وَ ووره
زه که بد کار یم لایق دَ نار یم | ته ځان ته گوره و ما ته مه گوره

(۹۱)

واه واه سړیه! د تا کارُونه | پخپل حکمت کړې څه کوپارُونه
په دام له سینده ماهی وَکاږې | په دم له سوړی اژدر مارُونه

(۹۲)

لب می په خوب کښ دَ دلبره ولیده | ډیر می تر لعل و تر یاقوت سره ولیده
چه ویښ له خوبه شوم سترگی می ومښې | ډک می له وینو دواړه لیمه ولیده

(۹۳)

اې هغه شاهه چه دِ وزیر نشته | ستا له درگاهه دَ چا گزیر نشته
ستا له کماله فضله اُمید لرم | که په تقصیر کښ، څما تقصیر نشته

(۹٤)

یار می په خوب کښ ډیر سخت رنځور لیده | مخ می په اُوښیو دَ فراق سور لیده
چه خواب نامه می دَ تعبیر وکَته | دَ ده صحت می دَ زړه سرور لیده

---

۱. یعنی ښایسته او مرغوبه او ښکلې.

(۹۵)

اې په هيڅ خوښه په هيڅ دلګيره                    دا وينا واوره له ما په ځيره
هيڅ خبر نه يې چه څه يې څه به شې                    ولی غافل يې دَ ځان له ويره؟

(۹٦)

چه زړه را ياد کا تير ساعتونه                    اوښی را توی کړم په رخسارونه
وار دَ دلبر دَ ليدلو تير شو                    اوس می نصيب شه ساړه آهونه

(۹۷)

دا چه ښکاريږی که دا هم داده                    دا په ظاهر په باطن کښ داده
دلې هورې ئې خلاصی نصيب نشی                    چه خوار شِې خلاص شی د دې له داده

(۹۸)

په ورځ توبه کړم په شپه ئې ماته                    لا می شی مينه په بدَو زياته
سکه نور بايده دی چه توبه ګار شم                    له دې توبې نه څه زيان و ما ته

(۹۹)

دَ دنيا ناوې که هر څو کښلې ده                    په اُوه رنګه زيور پسللې ده
نور دې آخلی بهره له وصله                    موږ په اوجاړه مينه نيولې ده[1]

(۱۰۰)

نن پدا ملک کښ عجبه جن ده                    په رنګ دَ خورُو په خوی د جن ده
په سوال کښ هوکې بې له يه نکا                    هيڅ نه خبريږې ده دَ چا جنده

(۱۰۱)

جار شم قربان شم دَ پلار تر پنده                    راته ئې وَوې ځما فرزنده!
لذت دَ ورکړی تر ساتل ډير دی                    خو ئې خبر ندَی ممسک له خونده

(۱۰۲)

ځوانی عاقل ته لکه دنيا ده                    پيری په مثل لکه عقبا ده
چه څه عمل ئې په ځوانی کړَی وِی                    دَ هر عمل په پيری جزا ده

(۱۰۳)

هيڅ نه پوهيږم چه لا به کله                    بنديان آزاد کړې ښنبتنه خپله
حاجت دَ خولې دَ عرضونو نشته                    ته خود خبر يې ځما له دله

(۱۰٤)

شيخه په ما باندې دَ خدای دَپاره                    نظر دَ مهر څه خو ګماره
عاجز يم توان دَ غمونو نلَرم                    نور می غمونو وته مه سپاره

---

۱.   ميشته نيولې ده.

(۱۰۵)

موږه ړانده یو، ځموږ فعلُونه — همسا ځکونِې دِی ور پسی ځونه
که فعل ښه لرې اندوه هیڅ مکَوه — که لار کوهی لری یا گړنگونه

(۱۰٦)

راشه که گورې سړی بې پنده — بندی په لاسو په پښو بې بنده
په رَږُو سترگو ړانده نه وینی — شنوا غوږوُنه کاڼه له پنده

(۱۰۷)

په زړه می ستا نه اندیښنه ډیره ده — واړه خوښی می له دله هیره ده
هر چا ته تیره ده دنیا بود نلَری — اوس پرې ښه پوه شوم چه تحقیق تیره ده

(۱۰۸)

نه ما څه کړی دِی نه به څه کړمه — چه راکوې ئې هغه کوَمه
نوم دَ ژوندون می نوم د علم دی — مړ یم عالمه، مړ یم، مړ یمه

(ی)

(۱۰۹)

چه ښه وی خلق ورته ښه نه وایی — ښه دی چه بد وِی ورته ښه ووایی
نظر په خدای کړه خلق مه گوره — که درته بد وایی که درته ښه وایی

(۱۱۰)

وخت دَ سحر شو پریونه تَلې — له کښیه لوریه راوختلې
دَ یار دَ راغلُو وعده شوه تیره — په ډیر کتل می سترگی وتلې

(۱۱۱)

چه به ترې نه وه گلوُنه لاندی — خوب به ئې نشو په پالنگ باندی
اوس په لحد کښی پراته په خاورو دی — پرې زرغونه شول گنډیری سپاندی

(۱۱۲)

دَ عارفانو دَ خولې کلام دی — چه ترې عبرت واخلی پرې می سلام دی
عیش و عشرت دَ دنیا کل واړه — بنیاد هیڅ نلَری تش احتلام دی

(۱۱۳)

زویه په کور کښی وچ تپوک په ژوئی — زوی ئې له لوړی کویلی[1] کوئی
رشتیا متَل دَی هوښیار وَیَلی: — دنیا خوږه ده تر ځان تر زوئی

---

۱. یعنی کویړی او کوکو لَری.

(۱۱٤)

یار می هر څو و سر ته لوری قهر و ستم کا همیش می زوری
لا تر دا زیات می واړه قبول دی خو یَو دِ نورُو وته نه گوری

(۱۱٥)

غافله وخورې دا سترگی توری زه تا ته گورم ته بل سر گورې
څما دَ مینی لافی هاله وهَه که زړه له غیرو مینو وَژغورې

(۱۱٦)

که هغه یار می ظاهر په بیارته دی خیال ئې راغلَی څما کنار ته دی
ځای به دِ پاسه پخپل تندی کوَم گله چه رنگ دِ څما و یار ته دی

(۱۱۷)

څو شکر خوری خاوری خوری شولې ډیری ئې څښی دَ خیال خپرې شولې
چه تل سپرلی ئې په عراقیانو وه اوس توری خاوری پرې پاس سپرې شولې

(۱۱۸)

چه پکښی ینښی ښه صورتونه دِی څکه په مځکه ښکاره گلونه دِی
قدم پرې ورو ورو په احتیاط بږده دا توری خاوری کښلی مخونه دِی

(۱۱۹)

تقدیر دریاب دَی موړه خسړی په حال هیڅ نه یُو چا خبر کړی
چه دا دریاب مو به چرته بیائی هم ئې له کومه ځایه راوړی

(۱۲۰)

دَ غم لښکر می په زړه هر دم راځِی یو لښلی نه وِی، بل پرې پیهم راځی
په خوب کښ کله ښه ساعت لید شی اندیښنې ډیری شوې هغه هم کم راځی

(۱۲۱)

هر چه امیر دَ لښکر بیدل وِی یا پرې خبری دَ داد مشکل وِی
تل به رټلی شړلَی گرزِی په هر محفل کښ به منفعل وِی

(۱۲۲)

ځنی هَوس کا مینه په باغ لری څوک مَی پرسته حب دَ ایاغ لری
دا دواړه گروهه بوالهوسان دی عاشقان مینه دَ زړه په داغ لری

(۱۲۳)

په ونه سبری، په مخ گلزاری په دواړه زلفو عنبر نثاری
خوبی دَ حسن زیاته تر حد لرې عیب دِ دا دَی دَ ډیرُو یاری!

(۱۲٤)

دَ یار غمونه چه هومره نه دی چه ئې وَوایم خو هم پټ ښه دی
ناحق به نور کړم اخته په زړه کښ هم به ئې زه ساتم دَ نورُو څه دی

(۱۲۵)

په زړه مزَریه په سترګو بازی　　سترګی منګل خونریز ته وازی
سازی ناسازی چاری په ما کوَه　　په ما دواړه ناسازی سازی

(۱۲٦)

په زړه مزریه په سترګو بازی　　سر تر قدمه له خوبۍ سازی
هر څه دِ ښه دَی عیب دِ دا دَی　　چه له نیازمنو هر ګورې نیازی

(۱۲۷)

یار می که هر څو راته ناساز وائی　　پرې خوشحالیږم چه ئې له ناز وائی
چه راته وکا ښرې ښکنځلی　　وایم که تل ئې راته باز باز وائی

(۱۲۸)

باران ووریږی څخواکی څاخی　　نسیم را والووت سنبل پرې ناځی
اسباب دَ عیش واړه موجود دی　　ساقی ته ګورُو که دَی را پاځی

(۱۲۹)

دانا په مثل دَ شهسوار دی　　پروت که په مځکه وِی هم قدر دار دی
ناپوه سړی په مثل غبار دی　　لاړ که اسمان ته شی هورې هم خوار دی

(۱۳۰)

د ګل له غمه بلبل افغان لَرِی　　ګل له خزانه خاطر پریشان لری
دا ګناه ستا دی دَ صبا باده　　نه ئې ګلونه نه ئې خزان لری[1]

(۱۳۱)

سپین چه بدخوی وِی، ترې نیکخوی تور ښه دی　　چه ستا په رای ځی، پردی تر ورور ښه دی
ښه هم هغه دَی چه ستا په ځان ښه وی　　تر سرو ګلونو په ژمی اور ښه دی

(۱۳۲)

ښایست دِ لاړ شو په خوی ښه نه ئې　　یا خو غځکی یې یا پړانګ لیوه یې
اوس له ماَ لیری په څنګ ګرځه　　نه هغه زه یم، نه هغه ته یې

(۱۳۳)

مخ چه د حسن له غوړو سپور شی　　عاشق ګرم ندَی که زړه ئې تور شی
ګل چه تازه وِی ځای ئې په سر کیږی　　خزان وهلَی لایق دَ اور شی

(۱۳٤)

غم دِ که هر څو په خاطر ډیر شی　　نه وِی چه زړه دِ پکښ تیربیر شی
لکه چه وار دَ ښادی ولاړ شه　　هسی به وار دَ غمونو تیر شی

---

۱.　نن ئې ګلونه سبا خزان لرې

(١٣٥)

عام وَ هر چا ته ښبتن دَ ساه وائی
په تخت چه کښېنی ورته بادشاه وائی
ژوندی هغه دَی، بادشاه هغه دی
چه تل په زړه کښ الله الله وائی

(١٣٦)

د عشق په کار کښ چه څوک صادق شی
دَ یار دَ مهر هاله لایق شی
دوئی دَ دواړُو تر منځه ووزی
عاشق معشوق شی، معشوق عاشق شی

(١٣٧)

نن می په زړه کښ دَ کښلیو خیال راغَی
په خوله وایه نشِی، یَو هسی خیال راغی
مگر یار راشی چه می ترې خلاص کا
گنه پوهیږم چه لوی جنجال راغی

(١٣٨)

نن چه په حسن دَ کښلیو سر دَی
هم هغه کښلی ځما دلبر دَی
څټ ئې تر مخه ښایسته تر دی
خدای ئې را پریږده عجب بشر دی

(١٣٩)

که هر څو خوی او خصلت یو شان لرې
همیش فتنې کا عاشق پریشان لرې
راشه چه دواړه سترگې دِ کښبل کړم
ځما دَ یاره څه خو نښان لرې

(١٤٠)

مخ که تر نمره هر څو رخشان لرې
شونډې سره لعل دَ بدخشان لرې
ستا له یاریِ ځمورِ توبه شه
چه خوی خصلت دَ ځناور په شان لرې

(١٤١)

که ښې ښې ښځی ښه ښه پوښاک وی
که ښه آسونه که نور املاک وی
چندان نقصان ئې سړی ته نه رسی
ځان ته او دین ته بد ډیر خوراک وی

(١٤٢)

آبشاره ولی دا هسی ژاړې
له چا فریاد کړې څوک پسی غواړې
که تل فریاد کړې له کانې سر وهې
بیا به را نشی اُوبه چه ولاړې

(١٤٣)

زړه می تر هومره غمو پایمال شی
گمان می نشِی چه بیا خوشحال شی
و نامحرم ته احوال وایه نشی
محرم ته نه وایم چیری ملال شی

(١٤٤)

کار کوَه کار، پکار هم کار دی
تاوان په ځان باندِی خالی گفتار دی
عقل څه بل دی خبری نور څه دی
کوتره گنگه طوطا طرار دی

(١٤٥)

که زر دوستان لَرِی یَو غلیم شوم لری
زړه ئې له غمه عاقل مغموم لری
که نور ځان روغ وِی یَو غاښ رنځور شی
په فراغت کښ به اندام کوم لری

(۱٤٦)
بحر خاموش دی سیلاب غرغر لری سیلاب تش لاسی سیند لَمن پر لری
دَ سیلاب گیډه له کاڼیو ډکه ده بحر په گیډه کښ قیمتی دُر لری
(۱٤۷)
که یاس له حقه تحقیق حرام دی یاس له مخلوقه دَ حق انعام دی
اصیل بنده کا، خلاص شوی بند کا طمع له خلقه دَ خلقو دام دی
(۱٤۸)
سحر سحر چه نوبت غږیږی دا رنگه ږغ کا که څوک پوهیږی
چه زه دَ بل وم، بیا به دَ بل شم په ما ناحقه څوک هوسیږی
(۱٤۹)
آورې بلبل دَ بهار څه وائی؟ چه همیش نه پائی مینه پرې نه ښائی
نن خو دَ گلو ښایست کمال دی دریغه تر کانده پوری که وپائی
(۱٥۰)
غمجن که گرزي که کښېنی پاڅی آه و فریاد کا اُوښی ئې څاڅی
ورته ښکاریږی لکه ویرونه که نور وگړی هوس کا، ناڅی
(۱٥۱)
یار می په مثل لکه آفتاب دی هم بې حجابه هم په حجاب دی
دَ مخ شعلې ئې د مخ پرده دی نور دَ آفتاب دَ آفتاب نقاب دی
(۱٥۲)
چه کښته پورته قطار قطار درومی نارې فریاد کا په اضطراب درومی
راځنی بیل شوی یاران را یاد کا په مخ می اُوښکی لکه رودباد درومی
(۱٥۳)
ته چه دا هسی له ما کنار کړې کښېنې هر چا ته له ما نه زار کړې
یا دروغجن وې منزل دِ لنډ وُ لا دِ نیت بل شو، بل یَو به یار کړې
(۱٥٤)
ته چه له ما نه کنار کنار گرزې ځان نا آشنا کړې بیگانه وار گرزې
زه ښایسته یم مشتاق می ډیر دی ته به بې یاره همیشه خوار گرزې
(۱٥٥)
اې چه عیبونه دَ بل اکثر وینې خپل ځان تر نورو خلقو بهتر وینې
سر دَ همه وُ عیبونو دا دَی چه دَ بل عیب دَ ځان هنر وینې
(۱٥٦)
دَ کړَلُو نه دِی دا دوې خبری دواړه هر گوره له عقله لیری
په بدرنگ زویه چه نغارې وهی بل په بدرنگی ناوی سندری

(۱۵۷)

چه عاقبت به له دنیا لیږدې    ولی دا هونبره طولانی بلیږدې
چه وخورې وخورې چه ورکا یو سې    نور به ئې یوسی چه زر دلې پږدې

(۱۵۸)

چه شجاعت کا دنیا په کف لَرِی    نوم به دَ نیکو په هر طرف لَرِی
هر چه حاصل کا دا دواړه خویه    هغه میرات دَ شاه نجف لَرِی

(۱۵۹)

چه نور وګړی لتا ویزار شی    خپلوی دَ خپلو هاله په کار شی
کنه په ورځ دَ راحت تر خپلو    بیګانه هم تر سړی ځار ځار شی

(۱٦۰)

هر څوک چه عقل دانائی هونبں لری    راز به په زړه کنبں همیش سرپونبں لری
تنها به هم نکا دَ راز خبری    که هیڅوک نه وی دیوال هم ګوش لری

(۱٦۱)

روژې شوې تیری سبا به عید وی    هوس به کاندی چه څوک سعید وی
سعید هغه دَی چه یار تر څنګ لری    شقی هغه دَی چه ترې بعید وی

(۱٦۲)

خبر دَ تللو دَ کوم آشنا راغی    چه قاصد هسی دلګیره بیا راغَی
په وار وار واړه یاران روان شول    اوس به زه درومم چه وار ځما راغَی

(۱٦۳)

که دَ عجم دی که دَ عرب دی    هم بې ادب دی چه رد دَ رب دی
سیل می وکړ دَ کتابونو    مقبول هغه دَی چه په ادب دی

(۱٦٤)

ادب په تله کنبں دی ادب په ناست کنبں دی    هم په ولاړ کنبں دی ادب په نماست کنبں دی
ادب په هیڅ کنبں له سړی نه درومی    نور څه لا پریږده ادب په زغاست کنبں دی

(۱٦۵)

که په دولت کنبں په شان دَ جم درومی    لا می تر جمه افزون حشم درومی
هیڅ به ښکاریږِی وَ دانایانو ته    چه له سړیه په تله دَ دم درومی

(۱٦٦)

څوک چه بې خدایه غیر محبوب کاندی    باطل اختیار کا واړه ناخوب کاندی
غیر به پریږدِی که دَ زړه فهم    په ضعف الطالب و المطلوب کاندی

(۱٦۷)

دَ منی وخت وُ و می لیدلې    یَو څو بلبلی چه ژړیدلې
خواری خسته وې، وې می سزا ئې    چه بې ګلونو وَ پائیدلې

(١٦٨)

لږده له نيکو نيکی چه څوکيږی نيکی له بدو، بدی له ښو کيږی
دَ اميد تخم پرې باندی مه کَرَه له بدی مځکی به ګل په څو کيږی؟

(١٦٩)

يو دوې وينا می درته ساتلی دی چه پير و ما ته تر خولې يستلی دی
مينه بې خدايه په هيچا مه کوَه بې خدايه مينی واړه باطلی دی

(١٧٠)

چه ئې دَ سترګو شرم رقيب شی خلاص له اغياره هاله حبيب شی
دَ ګل لمن به پرې ککړه نه کا ګل ته که هر څو اغزی قريب شی

(١٧١)

که دَ دنيا دی که د عقبا دی و ما راکړی نعمت مولا دی
شماره ئې څکه کولَی نشم چه لايعدٌ او لايحُصٰی دی

(١٧٢)

چه کښته پورته څمور نفس درومی هر څه ئې هير دِی په ياد دَ نس درومی
حاصل دَ دين دَ چاری هيڅ نشته حيف صد حيف اوقات عبث درومی

(١٧٣)

دا دوې خبری څما په ځای دی پرې به پوهيږی چه روښن رای دی
مقبول دَ خلق مردود دَ حق ګڼه مردود دَ خلقو مقبول دَ خدای دی

(١٧٤)

که دښمنان دِی که ئې خپلوان دی واړه آفت دَ سږی دَ ځان دی
دښنی خپلوی چه له هيچا نکا په دين دنيا کښ هغه کامران دی

(١٧٥)

څما شوې وچی دَ غمه لاړی هم می په زړه کښ چړکی وَلاړی
زه دِ په هسی احوال کښ پريښوم تا راته شا کړه را څنی ولاړې

(١٧٦)

چه پدا لاری سبا بيګا کړې تلنه، آهونه، فرياد ژړا کړې
کلی مالت به واړه خبر شی ما به خرابه ځان به رسوا کړې

(١٧٧)

که سپين او سره ئې په کور کښ تل وی چه نه ئې علم نه ئې عمل وی
بنياد ئې نشته آخر به خوار شی بخت به تر کومه ور سرَه مل وی

(١٧٨)

تر هر څه بد دَ کجیٔ خطر دی کجی به نه کا چه دانشور دی
الف چه سم شی کجی ئې نشته څکه تر نورُو حرفونو بر دی

(۱۷۹)

لمړی می مینه په مخ دَ یار شی　　بیا ئې په طمعه دَ ښه گفتار شی
فکر ئې بیا دَ بوس و کنار شی　　په عشق کښ کله صبروقرار شی

(۱۸۰)

از بس چه تل می جاری په خوله یې　　یاد می دلبره هسی په زړه یې
چه څوک له ورایه راته ښکاره شی　　خوشحال خوشحال شم وایم چه ته یې

(۱۸۱)

چه نوم ئې وشی دَ محرمۍ　　خوب به په څوکا دَ بې غمۍ
په یَوَه ټکی محرم مجرم شی　　ویره دِ کاندی دَ محرمۍ[1]

(۱۸۲)

دَ اُوښیو ډکی سترگی نظر کوې　　دَ خپلو تللو راته خبر کوې
چه دَ جوگیانو جامې دِ واغوستې　　پوهیږم لیری ملک ته سفر کوې

(۱۸۳)

په ډیر عالم کښ که زړه می چَوِی　　هم به می اُوښی د سترگو نه وی
زه په تا ژاړم په هسی ځای کښ　　چه یَو دِ غم وی دوهم می زړه وی

(۱۸٤)

چه خوښ له گله دلگیر له خاره دی　　عشق له دو بیته بې اعتباره دی
نه شکایت کړم له چا نه شکر　　درد می له یار درمان له یاره دی

(۱۸۵)

مست یم دعا کړم که ته هم مست شې　　را سره کښنیني باده پرست شې
پیاله دَ میو په لاس کښ واخلې　　دَ نام و ننگ دَ ښیښې په شکست شې

(۱۸٦)

ډیر څه می وکړه وې می آشنا شوې　　لکه زه ستا یم، ته هم ځما شوې
یا ته بدخوی یې یا می بخت بد دی　　لا تر غلیمه په هغه خوا شوې

(۱۸۷)

بادشاه چه عدل انصاف تمیز لَرِی　　خدای به ئې دلی هورې عزیز لَرِی
چه دا خویونه ور څخه نه وِی　　آخر به خوار شی که نور هر څیز لَرِی

(۱۸۸)

چه هنرمند دَی هغه حاسد لری　　اغزی گلونه، رقیب شاهد لری
کله به ښه یسی دَ بومو زاغو　　باز چه مسکن دَ بادشاه ساعد لری

---

۱.　د مجرمۍ یا د محرومۍ.

(۱۸۹)

څو له پرهاره زَوِی بهیږِی      پرې مې صحت شي زنځور ښه کیږی

همدرد مې نشته چه ور سَره وژاړم      له ډېره غریوه مې حلق خوږیږی

(۱۹۰)

هر چه دَ هجر مزری داړلی دی      که ساه پکښې وی په مړه شمارلی دی

لاری دَ تلَلو بندی شوې      غائب دَ سترگو په خدای سپارلی دی

(۱۹۱)

څه شو که سپینی وِی دَ دواړو پیِ      دَ غوا دَ غوا دِی، دَ سپیَ دَ سپیَ

پاک څاڅکی بویه له پاکه ځایه      چه واخلی حمل ځنی سیپیَ[1]



(۱۹۲)

په درد مې نور څوک بیمار دردمن ندی      بې ما په غم کښ ځما غمجن ندی

که پلار که زوی دی که ورور که یار دی      تر ما نه هیڅوک په ما مَیَن ندی

(۱۹۳)

زر ئې که هر څو په کور انبار وی      چه ورکړه نکا، په خره زر بار وی

چه پکښ نه وِی اُوبه دَ رحم      وریځه نه وِی یَو تش غبار وی

(۱۹٤)

اې چه په فکر دَ هیچا نه وی کړې      زاړه به کله دَ خوارو نوی کړې

باران دَ رحم وربانده ووره      چه بیا له مځکی زرغونه سوی کړې

(۱۹۵)

زاهد ولی را پوری خاندې      مخلوق پخپله کله څه کاندی

چه ئې رابیل او چنبیل پیدا کړه      هغه پیدا کړه گنډیری سپاندی

(۱۹٦)

چه په ظاهر غوړوی په باطن سپوروی      په ژبه خوږ وِی په زړه کښ شور وی

ور سَره مه کښینه تا به تباه کا      سپین زر که سپین وی اثر ئې تور وی

(۱۹۷)

گوره نن کانده روزگار په څو کیږِی      نیکی له بدو، بدی له ښو کیږِی

هر چه بدخویه بد فعل کمذات وی      دَ خلقو مینه هم په هغو کیږِی

(۱۹۸)

اې چه وَیَل کړې ما ته ښه نه یې      ښه چه زه بد یم، ښه چه ته ښه ئې

زه به هغه کړم لکه چه زه یم      ته هم هغه کړه لکه چه ته یې!

---

۱. دا کلمه په یوه نسخه کښ سپیَ ده، دَ سیند خاوند سیپیَ په معنا دَ کاچوغی لیکی، مگر له موقعه داسی ښکاریږِی، چه دا کلمه په معنا دَ صدف ده.

(۱۹۹)

که اشتها دَ سړي دَ سير وِي — خوراک ئې بويه چه کم نيم سير وِي
چه ډير خوري کله هغه تر ډيره خوري — هر څوک چه لږ خوري خوراک ئې ډير وی

(۲۰۰)

خوږ ئې په فقر معنوی حلق شی — څکه اطلس ئې بدل په دلق شی
نظر دَ عامو پرې باندِې بند وِی — بنده دَ مينی بادشاه دَ خلق شی

(۲۰۱)

از بس چه تل می جاری په خوله يې — نهال می دلبره هسی په زړه يې
چه څوک له ورايه راته ښکاريږی — خوشحال خوشحال شم وايم چه ته يې

(۲۰۲)

دَ عاشقانو دَ خولې يَو بول دَی — چه خال و خط دَ ښايسته پسول دی
خدای دِ دلگير مکړه چه دلگير نشې — دَ مخ وينښته دِ دَ مياشتی شپول دی

(۲۰۳)

جوړ به تر کومه زيبا صوررت وی — آخر به خاوری سَره لت پت وی
که نن مات نشو سبا ئې گوره — دَ خاورين لوښی ښکاره مدت وی

(۲۰٤)

دا سنبل ندی وينښته مشکبار دی — دا لاله ندی کښلی رخسار دی
دا نرگس ندی سترگی د کښليو دی — چه خاوری شوی پخپل خپل وار دی

(۲۰۵)

که لب دِ لال کړم لال خو شيرين ندی — که غاښ دِ دُر کړم دُر هسی سپين ندی
که مخ دِ نمر کړم دَ نمر کړه وړه نشته — که دِ سنبل کړم سنبل مشکين ندی

(۲۰٦)

دَ باد فروشو په پوکو ډډ شې — کښيني دَ ځان په ستاينه گډ شې
خود به دِ هر څوک ثنا صفت کا — که دَ همای غُندی قانع په هډ شې

(۲۰۷)

په خوشحالی کښی هوښيار غمجن اوسی — چه سبا کيږی بويه چه نن اوسی
درد ئې دمه وينم که درد ئې نه وی — چه دَ دردمنو په درد دردمن اوسی

(۲۰۸)

لښکر په مثل لکه ښه آس دَی — سردار ئې سپور دی چه سپور پرې آس دی
که هر څه جلد وی چست و چالاک وی — چه سپور ئې تښتی دَ آس څه لاس دی

(۲۰۹)

چه فرمايلی دَ خدای رسول ﷺ دی — واړه په سترگو ځما قبول دی
په بل څه اَړه، ځموږ څه کار دی — چه باندی کار لَری ظلوم جهول دی

(٢١٠)

ربه زړگی می له غیرُو سوړ کړې
هر دم می خپله بندگئ ته جوړ کړې
زړه می څه لاس می دواړه خالي دی
دَ قناعت په خزانو می موړ کړې

(٢١١)

چه محبت کا له چا چه تل نه وی
تر هغه هیڅوک کم عقل بل نه وی
ځما څه کار دَی دَ خوشحالیو
خوښی هغه کا چه څوک ئې خپل نه وی

(٢١٢)

دَ غم امان وشه چه په چا زور شی
روښان جهان ئې په سترگو تور شی
په ورځی غم په یارانو ویشم
په شپه یواځی په ما تندور شی

(٢١٣)

راشه که گورې دَ عقل وړَی
وچ ئې له تندی دنَنه سړَی
گډ په دریاب شو اوُبه ئې نه څښې
ور ځنی راغَی هم هسی تږَی

(٢١٤)

هغه چه ستا دی چه ئې ساتل نکړې
ویره می کیږِی چه ئې دَ بل نکړې
که دا دِ خوی دی دا دِ خصلت دی
خپل به پرَدِی کړې، پردی به خپل نکړې

(٢١٥)

چه مخ په یار پسی دَ چا بدرنگ نه وی
مخ ئې ومه وینم چه هیڅ ئې رنگ نه وی
بالبنت په ډیرو ژړلو لُوند کړم
چه ویښ له خوبه شم یار می تر څنگ نه وی

(٢١٦)

مردان په سوال کښ دَ سائل نعم لری
چه لن لما ولا و مالم لری
لکه په لن کښ الف محذور شو
هسی به ورک شی که ډیر نعم لری

(٢١٧)

چه دروغجن دی له حقه لیری وی
هغو ته زهر رشتیا خبری وِی
مشک نجاست وِی و کناسانو ته
خاوری خورو ته خاوری شکری وی

(٢١٨)

چه یار می لاړ شو په لویه لاری
را باندی راغلې ورَځی دشواری
لړمون می سوَځِی روغه عالمه
څه کړم چه نکړم بارې چیغاری

(٢١٩)

عشق می خاطر دَی ځکه پسندلی
چه عشق کښ سپور وم، بې عشقه پلی
په عشق بادشاه وم پروا دَ چا نکړم
بې عشقه گرزم لکه نتلَی

(٢٢٠)

چه ډیر می کړی باندِی گناه دی
هر هر مقام می په گناه گواه دی
تور می دَ ږیری و زړه ته پریواته
ږیره می سپینه زړه می سیاه دی

(۲۲۱)

په زړه می هومره غمونه ډیر دی | چه می وختونه دَ خوښی هیر دی
دردمنه روغ ته له دردونو مه وایه | وایه و ما ته چه را بانِدی تیر دی

(۲۲۲)

چه پیدا شوی ظلوم جهول دی | هوس ئې سود دی اندوه ئې نول دی[1]
چه عاقلان دِی پرې به پوهیږی | نامعقول ندی، داقال معقول دی

(۲۲۳)

که ډیره سعی کوښښ کړې څه شی | په وخت چه نکړې بې وخته څه شی؟
که هر څو مټ په بیړیَ ملاح کا | په ټانک[2] چه کښیوزی پوری هاله شی

(۲۲٤)

صورت می هر څو که ډیر زبون دی | که می دَ مځکی دَ لاندی یون دی
زه به په لور دَ اشنا روان شوم | یون می که هر څو په شواخون دی

(۲۲۵)

پسرلی خزان کړی، خزان بهار کړی | مالدار نیست کار کړی، نیست کار مالدار کړی
دَ چا دارو کړی، دَ چا تیر وار کړی | څه څه کارونه پروردگار کړی

(۲۲٦)

که ورکړه خیر دَی چه هیر شی گل شی | که هر څو لږ وی چه یاد شی کل شی
چه باغوان تخم په خاورُو پټ کا | پیدا ترې هاله ښایسته گل شی

(۲۲۷)

چه کل همت ئې خوراک لباس وِی | په تحقیق هغه ارذل الناس وِی
شرف په خوی دَی په دیانت دی | که څوک شریف دی یا څوک کناس وِی

(۲۲۸)

دا گمان مکړه چه ستا دی تل به وی | د بل دی ستاسی، ستا دی د بل به وی
دَ زرو کالو سړی مرگ پرې نښول | ته که ډیر پایې نهایت سل به وی

(۲۲۹)

لکه عامل شول تر خاورُو لاندی | عمل هم ورک شو په مځکه باندی
اوس په خبرو پړه ول وړه ول دی | دا بیت بازیَ دی، عالم ئې کاندی

(۲۳۰)

بیگاه نژدې شو دَ غرُونو سیوری | په سم را پریوتې له سپینې توری
ډیر ډیر ویریږم یاره نژدې شه | چه ځیر دِ گورم هم می ځیر گورې

۱. اندوه ئې سود دَی هوس ئې نول دی
۲. وخت، موقع.

(۲۳۱)

که په حکمت کښ تر هر چا پاس وی    اصیل نجیب وی چه خالی لاس وی
پروت به په خاورو لکه الماس وی    سپک په نظر دَ عوام الناس وی

(رباعیات تمام سوه)

# ترکیب بند

سخ دَ هغه زړه چه کا اشغال دَ محمدﷺ
بخت دَ هغی خولې چه لری قال دَ محمدﷺ

بې له یوه خدایه چه کمال دَی دَ ده علم
نور چا ته ښکاره نه دی کمال دَ محمدﷺ

خوت موسی په طور "فاخلع نعلیک" حکم پر وشو
عرش هم مفخر شو په نعال دَ محمدﷺ

سر به ئې دَ فخر تر اُوه آسمانه تیر شی
هر چه له اخلاصه شی پایمال دَ محمدﷺ

خدای چه څه دَ خدای دِی همگی واړه دَ ده وُ
څه شو په ظاهر که نه وُ مال دَ محمدﷺ

نور نبیان به واړه دَ ذرې په دود څرگند شی
وَبرینښی چه نمر غُندی جمال دَ محمدﷺ

خال چه په مخ کښیږدی یو په سله حسن زیات شی
ځکه خال دَ حورُو شو بلال دَ محمدﷺ

په ورځ دَ قیامت چه خلایق واړه حاضر وی
هاله به ښکاره شی جاه جلال دَ محمدﷺ

وائی چه که حب دِ دَ خدای پریوزی په زړه کښ
حب په محمدﷺ کوَه په آل دَ محمدﷺ

خدای دَ ده له رویه تمامی خلق پیدا کړه
ده هم بې له خدایه همگی واړه تر شا کړه

خدای دَی صفت کړَی په قرآن دَ ابوبکرؓ
فرضه دَه ثنا پر انس و جان دَ ابوبکرؓ

بې له دې چه ځان او مال ئې ځار تر محمدﷺ کړی
نه وُ په خاطر کښ بَل ارمان دَ ابوبکرؓ

بوی به ئې له خولې دَ وریتو غوښو همیشه تله
تل دَ عشق په اور وُ زړه بریان دَ ابوبکرؓ

استاد دَ انبیاؤ شو عالم دَ ده له روخه
ادب ئې در همیش په دل و جان دَ ابوبکرؓ

ځکه انبیاؤ آرزدئی دَ ده امت کړه
چه څیر ئې کړ په لوح محفوظ شان دَ ابوبکرؓ

تل ئې په دوستانو باندی رحم دَ رحیم وی
یاد ئې دِی په لعن دښمنان دَ ابوبکرؓ

نور عالم مشتاق دی دَ جنت جنت دَ هغو
هر چه دِی له صدقه مشتاقان دَ ابوبکرؓ

فقر ئې موندلَی وُ دَ پاک نبی له فقره
ځکه بادشاهان شول گدایان دَ ابوبکرؓ

خلاصه ئې په روی دَ محمدﷺ له ما نه مکړه
لاس می لگوَلی په دامان دَ ابوبکرؓ

هیڅ حاجت ئې نه غوښت دَه په خدای راوړ تصدیق
ځکه سر دفتر دَ اولیاؤ شو صدیقؓ

پس چه له صدیقَ په صفت دَ دره دار شه
هاله مسلمان سړی سنیانو سَره شمار شه

حب ئې په سړیو په پیریو باندی فرض دی
هر څوک چه ئې حب نلَری دلې هورې خوار شه

دین دَ اسلام بیا مونده قوت دَ ده له دینه
دا رنگه قوت به په قوت دَ کردگار شه

سخت په کافرانو وُ تر زړه دَ کافرانو
نازل په باب ئې ځکه "اَشِدّا عَلَی الکفار" شه

هسی رنگ آیت پرې جبرئیل له خدایه راوړ
هر چه به په وخت دَ مشورت دَ ده گفتار شه

کله چه به دَی دَ خدای دَپاره په غضب شو
شیطان به په کروهونو له هغه ځایه فرار شه

صدق دَ صادق که له صدیقَ مخ ښکاره کړ　　عدل دَ عادل دَ ده په عدل کښ اظهار شه
عدل چه دَ ده لکه آفتاب په جهان وَخوت　　پټ په سوراخونو کښ ظالم شوپرک وار شه
پاک نبیﷺ وَیَل چه پس له ما که پیغمبر وِی
روخ ده چه هغه هم دَ خطاب زویه عمرؓ وِی

فرض لکه په خلق باندی تفضیل دَی د شیخین　　هسی رنگ واجب دَی محبت د ختنین
دوه ځله چه نور دَ نبوت باندی تابان شه　　ځکه مخاطب شو په خطاب دَ ذی النورینؓ
بحر دَ سخا دَ عز و حلم، کان دَ شرم　　یښی ئې قدم وُ دَ همت په فرقدین
تخمیر ئې دَ طینت وُ دَ جنت په شهد وشوی　　تریخ ئې چا ته نه ویَل هر گز له شفتین
ځیر به ئې له شرمه و هیچا ته کتی نشو　　تل به ئې پخپل کنار نظر وُ د عینین
عمر ئې تمام په خوشنودی له خلقو تیر کړ　　کړ به ئې په هر ساعت طاعت دَ ثقلین
خدای چه "رحماءُ بینهم" و ده ته ووې　　ځکه ئې په خوی دَ رحمت بیا موند زیب و زین
یو ئې له دنیا نه واخست بل ئې له عقبا نه　　بیا ئې موند وصال دَ خپل مطلوب په قدمین
لاړ که له دنیا نه په سرو وینو رنگوَلی　　گرزی په گلزار کښ دَ جنت په شین شین
جمع دَ ضدین که پر هر چا دی محال
دین او دنیا جمع کړه وَ ده ته ذوالجلال

رفض ندَی خلقو محبت دَ مرتضیؓ　　خدای دِ وما راکړه په حرمت دَ مرتضیؓ
لا به تر ده مینه په بوبکرؓ په عمرؓ کا　　وِی ئې چه په زړه کښ محبت دَ مرتضی
هر چه ئې په زړه کښ بغض پروت وِی د شیخینو　　تل وِی په هغو باندِی لعنت دَ مرتضی
نشته هسی رنگه یَو بل ځوان لکه علیؓ وِ　　دا رنگه خدای کړِی دَی صفت دَ مرتضی
خدای چه پرې خطاب اسدالله له لطفه کښیښود　　تم پدا خطاب شو شجاعت دَ مرتضی
ځان ئې دَ هجرت په شپه ایثار تر محمدﷺ کړ　　خدای ستایه فرښتو ته فتوت دَ مرتضی
کوټ ئې دَ خیبر په تنها ځان کړ دړی وړی　　زیات دَی تر بیانه زور قوت دَ مرتضی
نبیﷺ دَ علم ښهر دَی، دَی وردَ هغه ښهر　　گوره چرته لاړ شو فضیلت دَ مرتضی
وبخښه خپل خدای عبدالقادر له ډیره فضله　　په روی دَ مرتضی په ذریت دَ مرتضی
ستوری دَ هدٰی دی د رسولﷺ واړه اصحاب
راضی دَی خدای له دیونه، رحمت ئې پر احباب

# مخمس

رنځا ورځ په ما بې تا ده توره تمه[۱]　　راته يَو شوه دَ غمونو غروُنه سَمه
اوښې ويني تويَوم  دَ زړه له نمه　　يَو زمان مي خلاصي نه وِي له اَلمه
زه دِ تل وينم دَ خوږو زړو مرهمه

فراق ډير را باندِي زور شو نه سهيږم　　شپه او ورَځ لکه باران هسې وريږم
تود لوگی مي له خولې ځی په زره وريتيږم　　په راتلو دِ لکه گل شگفته کيږم
بربڼ رايشه اشنا صبا قدمه

چه خوراک ئې هميشه خون جگر وِی　　تل فرياد تل په ژړا په نارو سر وِی
تر مجنون او تر فرهاد ئې حال بتر وی　　دَ مهجور تر زندگی لا مرگ بهتر وِی
که ستيه ستیَ کيږی نده گرمه

که هر څو دَ خوښیَ ډکی پيالې شومې　　عاقبت به ئې له غمه وچ شی کومی
له دنيا به هوښيار څرنگ خوښی مومی　　چه دَ سترگو په ځنبل له سړی درومی
زړه تړل پرې پوری مه کوَه آدمه

دَ دنيا دَ مينی سخت زبون بنياد دی　　په دنيا مَيَن بنده دَی، نه آزاد دی
دَ دنيا دولت په مثل لکه باد دَی　　په دنيا چه ئې زړه ښاد هغه ناښاد دی
کله مخ کا کله څپ کاندِی له همه

ستا مَيَن هميشه خوار گرزی په زوی　　تل په غم تل په آشوب کښِ وِی څو ژوی
خوار خسته حيران پريشان به لکه زه وی　　تر هغه به بل ناپوه په جهان نه وی
چه به تا وته لَرِی دَ وفا تمه

څو عاشق دَ يار په مينه کښِ خواريږی　　خپل پرَدِی ور ځنی عار کا ويزاريږی
لا ئې عشق و معشوقې ته اظهاريږی　　پخپل يار چه ستم نکړِی آزاريږی
چيری نه وی لاس کوتاه کړی له ستمه

که هر څو په جهان ډيری وِی نگاری　　هوسیَ سترگی، مو کمری، پريواری
مه جبينی، تن سيمينی، گل رخساری　　مخ نسرينی، سبر قدی، خوش رفتاری
دَ ښايست وينا په تا باندی شوه تمه

شرمنده دِ تر ښه مخه گلزار وينم　　چه بې ستا له مخه گل دَ بهار وينم
دَ هر گل پاڼی په ژړه لکه خار وينم　　دَ زلفينو تر حلقو دِ عذار وينم
که سمن دَی ستا په زلفو کښ صنمه

---

۱.　دا مخمس دَ عبدالقادر خان پر خپله بدله جوړ شوی دَی.

راته څه وایې چه ویره دَ ځان مکړه — دَ خپل یار په محبت کښ نقصان مکړه
هیڅ و ما ته له دې بابه بیان مکړه — که می سر ځی که می مال ځی گمان مکړه
چه به مینه شی ځما له یاره کمه

که له عشقه شې سنگسار عبدالقادره — دَ منصور غنُډی په دار عبدالقادره
په نارو سوځې په نار عبدالقادره — مکړه بې عشقه بل کار عبدالقادره
د عشق چار په لاس کښ ونیسه محکمه

# قصیده

که په تنِ دِ هر وینښته ژبه هزار کا — بیا دَ ژبی ئې هزار هزار گفتار کا
که سینډُونه دَ جهان واړه سیاهی شی — قلمونه دَ جهان واړه اشجار کا
فرینښتې، سړی، پیریان و بله ټول شی — په بیان په کښنو هزار ځله تکرار کا
دَ خپل خدای دَ نعمتونو په حساب شی — گمان مکړه چه ئې یَو نعمت په شمار کا
دَ نور چا څه زور قوت چه اولوالعزم — پخپل عجز کښ له دې بابه اقرار کا
هغه خدای چه برکمال دَی په قدرت کښ — چه پخوا په خاطر نه وِی هسی چار کا
په اوبو باندی یَوه کربښه محال ده — چه ئې وکا، ځان که هر څو استاکار کا
حکیمان که واړه جمعَ دَ عالم شی — په هوا به یَو ورق کله قرار کا
ده اساس دَ درست عالم په اُوبو کښېښی — دَ نور چا کله قدرت چه هسی کار کا
هم ئې بې ستنیوُ اسمان دَی دروَلی — حیرانیږی چه نظر ورته هوښیار کا
گران آسان دَ ده قدرت وته یکسان دی — نه خلقت دَ چا آسان دَ چا دشوار کا
ورته یَو خلقت د ماشی دَ اسمان دی — کاه او کوه په یَوه آن کښ پدیدار کا
باد او خاوری اور اُوبه که هر څو ضد دی — په یوه مکان کښ جمع هر چهار کا
که پخپله اور غالب وُ پر لرگیو — تروئې ولی په لرگیو کښ حصار کا
که څلور دِی که پنځه که شپږ اُوه دی — همگی په حکم کار دَ کردگار کا
حرکات دَ هیڅ اشیا نسی بې حکمه — سکنات کله پخپله اختیار کا
جهان ډک کاندِی په ورځ دَ نمر له نوره — بیا په شپه نابود دَ ده واړه انوار کا
ښایسته کاندِی اسمان په شپه په ستوریو — په ورځ مځکه ښایسته په لاله زار کا
دَ خزان په وخت زینت له مځکی یوسی — ښایسته ئې بیا په وخت دَ نو بهار کا
دَ اُوبو تفاوت هیڅ و بله نه وِی — ترې پیدا رنگا رنگ گل الوان اثمار کا
نه دَ گلو رنگ و بوی په یَوه شان وِی — نه لذت دَ سیبو ونه دَ انار کا
له یوه باغه میوې له یوې مځکی — تفاوت ئې دَ لذت تر منځ بسیار کا
په همه کانیو تابش دَ نمر یکسان دی — ځنی کانی ځنی لال یاقوت آبدار کا
له یوه څاڅکی پیدا کا مرغچیچی — له یوه څاڅکیه پیدا دُر شهوار کا

له یوه اصله نطفه پیدا انسان شِی
ځنی ځنی مسلمان ځنی کفار کا

ځوک بدرنګ چه له لیدو ئې نفرت مومی
ځنی ځنی ښایسته کښلی نګار کا

ځوک تونګر دَ قناعت په خزانو کا
ځوک دَ طمع دَ حرص په خواری خوار کا

ځوک توفیق دَ طاعت بیا مومی له ده نه
شپه او ورځ ئې خپل طاعت وته بیدار کا

چه توفیق دَ عبادت ور ځنی واخلی
مخ ئې تل په میخواری لا په قمار کا

له ازله چه طالع دَ چا تریخی وی
له حلالو ورته لا خواږه مردار کا

خزانې ئې لایعد او لایحصی دی
ولی ورکړه دَ هر چا پخپل مقدار کا

نیک و بد له ده هر چا وته رسیږی
خوار هغه شه چه په دا باندی انکار کا

په طلب ئې ځوک په دَو ځوک په ځغستا ځی
ځوک په سر ځوک په سینه پسی رفتار کا

دَ میږی دَ پښو آواز اَروِی بې غوږو
چه په توره شپه په تور کانړی ګذار کا

نژدې لیری ئې لیدو ته برابر دی
دَ نظر حجاب ئې غرنه ئې دیوار کا

دَ نفس څښتن همه واړه هوهو کا
نه یواځې ذاکران دَ ده اذکار کا

تسبیحات ئې نه یواځې فریښتې وایی
تقدیسات همه اشیا دَ خپل دا دار کا

دَ دنیا عمارتونه چه لیدَل شی
دَ دوران په زلزلو به ئې مسمار کا

همیشه به ئې چیچی پرې به هړاند وِی
په بخیل به دَ بخیل خزانه مار کا

چه دَ ظلم اور ئې بل کړ په عالم کښ
ظالمان به ځان سوخته په دغه نار کا

پخپل ځان باندِی ستم کا نه پوهیږی
چه ستم په بې وزلانو ستمګار کا

مکافات به یَو په سله ځنی واخلی
چه بې شرعی لږ دَ چا خاطر آزار کا

عاقبت به وږَی تږی ځنی درومی
که هر ځو لئیم په کور کښ زر انبار کا

چه بې ځایه ظلم کا په مظلومانو
ځان ظالم په طوق دَ لعن ګرفتار کا

حسنات به ځنی واړه خصمان یوسِی
پرې انبار به دَ خصمانو بد کردار کا

دا دنیا لکه مزرع دَ آخرت ده
پکښ کَر ځنی دَ ګلو ځوک دَ خار کا

دَ اخستو ورځ ئې ورځ دَ قیامت ده
هم هغه به وَریبی چه کښت و کار کا

دَ جهان ورکوَل کل په عاریت دی
تعلق به دانا څه په مستعار کا

چه ئې پسله ده نور تار په تار ولجه وړی
مرد هغه چه پخپل لاس ئې تار په تار کا

چه پر تله ترپلی لا دَ سپاره سخت دی
بډایی په پلی ولی شهسوار کا

چه په خدای باندی غنی، غنی هغه دی
دَ سبب په غنا څه ځوک اعتبار کا

لایزال دَی سلطنت دَ ګدایانو
دَ زوال ویره ئې نشته نه ئې ډار کا

دا دَ فقر لوئی ځو ده نه پوهیږم
چه بهتر دَ موجودات پرې افتخار کا

ستا په ور کښ ګدا پروت په تورُو خاورو
که دَ درست جهان بادشاه شِی ځنی عار کا

چه ئې زړه په معدوم تېنګ دَی تر موجوده
ما دِ خدای تر هسی رنګ ځوانانو ځار کا

وُر کوَل په طمع ورکړه دَ رشوت دَه
ناپوهان به ورته وائی چه ایثار کا

که گنج غواړې رنځ کوَه عبدالقادره
مزدوری به ئې هم ومومی چه کار کا

# قصیده

که دِ نشته په یقین کښې درغلی[1] — دَ کوځې دَ سپی ئې تلی څټه تلی
په مزریو ئې شرف دَی دَ سگانو — چه انکار کا دغائی دَی دغلی
که ئې سپی په شور دریاب کا ژبه تره — هغه دم به ئې اَوبه شی عسلی
دَ کمال ویره ئې هیڅ دَ زوال نشته — لایزال ئې دَی کمال لم یزلی
تمامی عالم درود ور باندِې وائی — ځنی ځنی په خفیه ځنی جلی
موجودات واړه لښکر د دې بادشاه دی — نمر سپوږمۍ ستوری ئې واړه مشعلی
انبیاء ئې دَ لښکر جماعت دار دِی — سپاه نه پرېږدِی چه کا بد عملی
نقیبان دِی نقباء چه اهتمام کا — دا د تا دوئی خدمت ښه راولی
هم پدا امید ادریسؑ دِ زرگری کا — که ئې ساز دَ براق ځل کا بخملی
د صالحؑ ناقه تل سر وَهی له کانیه — چه ئې نشوم په لښکر کښې پرتلی
د خلیلؑ غُندِی به خلاص شې له نیرانه — که دَ ده په عشق کښې نه ئې خللی
عرش ئې تخت چه باندِی ناست دی عدالت کا — چه اودس پرې کا کرسی ئې صندلی
جبرائیلؑ ئې جلو دار زین پوښ په غاړه — په رفتار نکا یَو دم معطلی
میکائیلؑ مکیال په لاس خدمت ئې دا دی — چه غلې ئې و لښکر وَته تلی
اسرافیلؑ ئې نَی نواز حکم ته گوری — بې دې کاره په بَل ندی مشغلی
عزرائیل ئې دی شحنه، دوږخ ئې حبس — دَ دین غله ئې بې عزته ورولی
و صدیقؓ ته ئې به وخت دَ رحلت ووې — نائب یې ځما په حکم ازلی
چه انکار کا څوک د تا له خلافته — دَ هغو په دین کښې پریوزی ارجلی
چه رانجه کا دَ صدیقؓ دَ قدم خاوری — هاله کشف غطا شِی دَ هر ولی
حق وَیل دَ توکل په قوت کیږِی — دَ عمرؓ غندِی بل څوک توکلی؟
چه حیا د عثمانؓ پر یو شی په خلق — په ایمان به درست جهان شی ممتلی
حد دَ چا دَی چه علیؓ سَره سیالی کا — ورته خدای وې ”لافتی الاعلی“
څلور واړه څلور رکنه دَ اسلام دی — دَ اسلام کوټه بې دوُی وه خللی
محبت دَ هر اصحاب په زړه کښې ځای کړه — چه حاصل دِ شی دَ خدای پیژندگلی
دَ اصحابو محبت قلب سلیم کا — نه هغه کا چه ئې زړه وِی عللی
که په چا د محبت په چا دِ نه وِی — رافضی شوې، خارجی، معتزلی
په حرمت دَ کربلا دَ شهیدانو — هم می لیری کړه له زړه طول املی

---

١. یعنی دروغ او کوټه والی.

یا الله عبدالقادر ور ځنی خلاص کړې
په حصار کښ دَ هوا دَی قبلی

# قصیده

مرد هغه چی بخښنښ لکه دریاب وی
په ښه بد باندِی مشفق لکه آفتاب وی
لکه مځکه هسی پست په تواضع وِی
دَ واړه عالم مرجع وِی هم مآب وی
په ثبات کښ تر غره لا ثابت قدم وی
په صفا او په نرمی کښ لکه آب وی
تل ئې وچولی دَ میاشتی غُندی ویل وی
دوست دښمن ئې له دیداره کامیاب وی
قناعت لکه همای په استخوان کا
نه ظالم نه حرصناک لکه عقاب وی
چه دَ ظلم لمبې بلی په عالم شی
پرې بریان دَ ده خاطر لکه کباب وی
په نعمت کښ شکر کا په محنت صبر
زړه ئې ټینګ په مسب نه په اسباب وی
په قضا دَ حق راضی خورم خورسند وی
ورته یَو جنت دوږخ ثواب عقاب وی
یو زمان ئې زړه خالی نه وِی له یادو
که په ناستی که په تللو که په خواب وی
اوامر لکه سنت ادا کوینه
پټ ځرګند له نواهی په اجتناب وی
که اشیا ورته ښکاره کماهَی شی
مناجات ئې "زِدنِی علماً" یا وهاب وی
عام عالم ته ناست ښکاریږی په رفتار کښ
دَ وصال تر شپې لا تله دَ ده شتاب وی
له تأثیره ئې بد ښه، لکه مس زر شی
په لمبو دَ عشق سوخته لکه سیماب وی
ځو چه ګرزی دَ دنیا په خرابات کښ
په باطن کښ آبادان ظاهر خراب وی
دَ ډک سیند غُندِی آواز نکا بهیږی
نه پرشوره پر غوغا لکه سیلاب وی
دَ دانا سوال ځواب په ادب ورکا
و احمق ته ئې په پټه خوله ځواب وی
دَ ښو بوی ئې په همه دیار پریشان وی
درست وجود ئې په معنا دَ مشکناب وی
په ظاهر جامه له خلقه سَره خلق
په باطن کښ تابعین وی یا اصحاب وی

هغه مرد ولی ګڼه عبدالقادره
چه عمل ئې په سنت او په کتاب وی

# قصیده

شګفته په باغ او زاغ شول دَ بهار ګل
هم په بام هم په کوڅه هم په دیوار ګل
نه یواځی ګل دَ ګلو بوټی وینو
بادام ګل شفتالو ګل وینو انار ګل
هر اشیاء دَ مځکی ګل پروردګار کړه
جمادات ګل نباتات ګل کل اشجار ګل
کانی بوټی خار وخس په ګلو پټ شول
دَ همه واړو عیبونو شو ستار ګل
چه د سترګو نظر لګی واړه ګل وی
وړاندی ګل دَ وروستو ګل یمین یسار ګل
هیڅ یَو ځای خالی له ګلو پاتو نشو
په بازار ګل په صحرا ګل په کوهسار ګل
که اسمان په شپه په ستوریو ښایسته وی
لا ترې مځکه ښایسته کړه په بهار ګل

عندلیب نارې وهی چه سیل کانې
بهار درومی ریږیدون کا په وار وار گل

لا تر کوره کوردید پروت په گور کښ ښه دی
چه به نه گوری سبز کال د دې گلزار گل

دَ بهار په سیل جونه زلمی کښیږدی
په اوربل گل په ټکی گل په دستار گل

دَ دلبر صورت تمام لکه گل روغ دی
پښې ئې گل لاسونه گل چهره رخسار گل

می گلگون، ساغر گلگون ښیښه گلگونه
ساقی گل حریفان واړه گل نگار گل

دَ بهار په سیل وخوځه له کوره
دَ راتلو دِ هرگور ډیر کا انتظار گل

چه گلونه بویوې احتیاط بویه
چه په شونډُو دِ و نکاندِی پرهار گل

چه دَ گلو هار په غاړه نازنین کا
په سینه باندی ئې څرخی لکه خار گل

خاص او عام ئې بهره من په ننداره شول
منتونه په هر چا باندی کړه بار گل

چه دَ یار له وصله ښاد وِی گل به گوری
دَ مهجور به هر گز هیڅ نه وی په کار گل

چه بې یاره دَ بهار په سیل درومم
په خاطر باندی می لگی لکه نار گل

په هزار رنگه گلونه شگفته شول
ولید نشو یَو په شان ځما دَ یار گل

چه دا هسی ئې په ډکه خوله خندا کړه
مگر نه وُ له خزانه خبردار گل

په هوس په خوشحالی ئې آموخته وې
گل پروره مکړه ژر دَ ژره خوار گل

بلبل هیڅ نه وُ خبر دَ عشق له تاوه
په فریاد کړ، په نارو کړ، په چیغار گل

چه دَ سرای په مځکه وا دَ پسرلی گل شی
شرمنده کا دَ کشمیر دَ بل دیار گل

دا رنگ گل چه په سبز کال دَ غواص[1]وا شول
دَ چا یاد نشی پخوا هسی بسیار گل

چه نښان دَ خپل اشنا ور ځنی مومی
ځکه یاد عبدالقادر کړ په تکرار گل

په بیاض کښ می دَ شعر ډَول ډَول
شگفته دی تر دا ښه هزار هزار گل

# قصیده

د بقا بهبود ئې نشته فانی ده
په دنیا چه مینه کاندِی نادانی ده

دَ دنیا دَ خلقو کار راته ښکاره شو
دَ سیلاب په مخ ئې کړې ودانی ده

دا چه ته ئې ودانی گڼې ناپوهه
دَ عاقل تر فهم عین ویرانی ده

تارکان به ئې دلې هورې خوشحال وی
تر حاصل دَ راغبانو پښیمانی ده

جمعیت دَ زړه په بخره دَ یکبین شو
دَ دو بین په بخره شوې پریشانی ده

دَ محنت په لاری ځه که مراد غواړې
ستا دَ مراد تر منځ پرده تن آسانی ده

هندو هم په خوله وَیَل کا چه خدای یو دی
و قضا ته ځان سپارَل مسلمانی ده

نفسانی کارۇنه کفر ور ښکاریږی
چه ئې بخره له ازله روحانی ده

په پریښوَل به دَ مراد مراد حاصل کړې
گام په کام دَ پاسه کښیږده کامرانی ده

---

[1]. ۱۰۹۷هـ کال.

چه په لهو په لعب ئې ضايع نکړې — دا ځو ورځې غنيمت زندګاني ده
نوراني ئې په طاعت په عبادت کړه — کله شپه دَ بيدارانو ظلماني ده
چه ماذون له حقه نه وِی شيخی کاندی — باور وکړه شيخی نده شيطاني ده
چه ئې صرفه دَ پيرانو په خدمت کړه — هم هغو بهره ميندلې له ځواني ده
خود پرست دِ عاشقئ ته هوس نکا — مرتبه دَ عشق اول جانفشاني ده
تحير په موافق دَ معرفت دی — ځو ئې شناخت هومره ئې زياته حيراني ده
په يَوه دانه اُوه سو دانې اخلی — پدا شان دَ نيکو کارُو دهقاني ده
پاس دَ زړه په آس قدم، پاس دَ نفس کړه[1] — پاس په تخت کښينه شاهی دَه خاقاني ده
دَ مزری غُندِی سرکوز نه ځې په لاری — په هر لور دِ لکه سپَی نګراني ده
پوښتيده به هر يَو شِی له رعيته — هر سړی ته ئې ورکړې سلطاني ده
حکومت ناستې په پل دَ جهنم دی — سهله کله دَ عالم حکمراني ده
رعيت لکه رمه له ليوه ژغورِی — بادشاهی په حقيقت کښې شباني ده
په ستم ئې تمامی جهان خراب کړ — څه عجب دَ اورنګزيب جهانباني ده
که رستم غُندِی ځوان لاندِی کړې دا څه شی — دَ زيردستو جفا وړه پهلواني ده
عاليشان به په نخوت په کبر نشې — کمينی کړه کمينی عاليشاني ده
پدا قول متفق دی هوښيار واړه — چه بلا تر هر څه سخته لساني ده
که خبر په حقيقت يې دَ خبرُو — خاموشی کړه خاموشی سخنداني ده
خپله ژبه ئې په ځان باندِی بلا شوه — چه بلبله په قفس کښې زنداني ده

ځان تر هر چا کم ګڼه عبدالقادره
که پوهيږې هم په دا کښې کلاني ده

# قصيده

په زړګي باندِی می غم انبار انبار شی — په راتله دِ همه واړه تار په تار شی
هميشه را څخه ناست او سر په څنګ کښې — ستا په ناست مي زړه آرام نيسی قرار شی
ښايسته دَ چين ماچين که دَ بل ملک دی — همګی دِ ستا تر کښليه مخه ځار شی
ستا له حاله به و تا وته څه وايم — پټ احوال به مو په مو درته آشکار شی
دا رشتيا وَيل ترخه په سړی لګی — چيری نه وِی چه خاطر دِ پرې آزار شی
په ترخو کښې نفعه زياته تر خوږو ده — باندِی ځکه رغيدَنه دَ بيمار شی
چه وَيَل دَ نيکخواه نغوږی پرې عمل کا — هم هغه به پخپل عمر برخوردار شی
دَ زړه غوږ باسه و ما ته چه ووايم — ځو خبری چه ګوهری ترې نثار شی
دَ صورت خوبی همه په عاريت دَه — څه خوبې به دَ دانا په مستعار شی

---

1. پاس دَ زړه، پاس دَ قدم، پاس دَ نفس کړه.

ستا پخوا ښايسته هم ؤ وار ئې تير شو
پخپل حسن به ستا څرنگ اعتبار شي

دَ ښايست خو دِ يَو څو ورځې باقي دي
پژمرده به دِ دَ مخ تازه بهار شي

صباحت به دَ بدل په قباحت کا
چه دِ تور ويښته ښکاره په سپين عذار شي

دغه مخ چه دِ تر گل ښايسته روغ دي
دَ ويښتو په ټوکيدل به لکه خار شي

دا چه اوس در پسې گرزي ډلې ډلې
همگې به لتا بيارته په وار وار شي

دغه ناز به دِ بدل واړه په نياز شي
څوک به نه وِي چه دَ ناز دِ خريدار شي

هم هغه چه اوس بلا د تا آخلي
تر بلا به ورته بد د تا ديدار شي

ستا ويښته به لکه خار ور باندې څرخي
چه په تا مَين لتا بوس و کنار شِي

دَ پټو په ځاى به ناست يې په مجلس کښ
اوس دِ ناسته که په غيږ کښ دَ خپل يار شي

دا چه اوس دِ په ليدلو نه مَړيږِي
هم هغه چه تا ته گورى به ئې عار شي

گه گهې چه تير ساعت درته زړه ياد کا
ستا به سرې اوُښکې روانى په رخسار شي

که دِ خوى خصلت دَ ښو وِي خوښ به اوسې
که خصلت دِ دَ بدى وى ستا به زار شي

دَ سيرت خوبى پيدا کړه چه باقى ده
په دنيا په آخرت به دِ په کار شي

مڼ په علم په ادب به ښه خلقت کړه
چه دلې هورې دِ جوړ پرې کاروبار شي

خود به علم خوى ادب درته بيان کا
څو خويونه به ځما و تا ته شمار شي

نيک انديش نيکو وَيُونکى نيک کردار شه
چه ممد دِ په هر کار پروردگار شي

کمينى کړه چه هر چا وَته عزيز وى
کبر مه کوَه آخر کبرجن خوار شي

هميشه خوله پټه اوسه په مجلس کښ
په ضرور دِ ستا دَ خولې وَيَل اظهار شي

که دِ سر دروِمى دروغ مکړه رشتيا کړه
دروغجن سړى بې قدره بې وقار شي

له هيچا نه غيبت مکوه چه اور دى
کل طاعت به دِ سوخته په دغه نار شي

سخن چين مه شه نمام چه په قيامت به
دا دوه گروهه په دوزخ کښ گرفتار شي

چه وعده وکړې له چا نوره ئې مکړه
فرق پدا دَ مسلمانان او دَ کفار شي

قناعت پخپل قسمت کړه حريص مشه
دَ ازل ويش به نه لَږ نه به بسيار شي

سخاوت کړه که په لږ وِى که په ډير وى
پدا خوى سړى هر چا وته رويدار شي

شجاعت په موافق دَ شريعت کړه
بې له شرع به لتا که څوک آزار شي

بې قضا دِ نشته مرگ په غليم مڼ کړه
که په لاس دَ همه واړو ذوالفقار شي

فخر مکړه په دنيا دَ هندو هم وى
دَ مؤمن په ښو خويونو افتخار شي

له هغه مجلسه تښته په کروهونو
چه وَيَل پکښ دَ شر يا دَ اشرار شي

ناست وَلاړ دِ له هغه زلميانو ستا وى
چه پتا کښ ئې ښکاره دَ ښو آثار شي

چه ئې مينه په شرير وِى دَى شرير شي
هر چه مينه په اخيارو کا اخيار شي

چيرى نه چه و زنا وته زړه هسک کړې
ځوانى مرگ به په دنيا کښ زنا کار شي

دَ دوزخ دَ عذابونو به لا سخت وى
په قيامت چه بوى روان دَ ده مردار شي

بنگ شراب مخوره چه ورځ دَ قيامت شي
خمر خور دَ بت پرستو په قطار شي

یو ذره خلاف دَ شرع قدم مږده
دَ کتاب په موافق دِ ستا رفتار شی
که پدا وَیَل عامل شې ځما ځانه
ستا مکان به دَ جنت تخت الانهار شی
ستا په شعر آفرین عبدالقادره
په پښتو خو به هم هسی رنګ ګفتار شی

# قصیده

چه دلې نشوې په شرع مستقیم
دَ صراط په لار دِ وینم هورې بیم
که په اور دَ ریاضت خپسرو سوځې
لاله زار به درته اور شی دَ جحیم
دَ ګناه توری دَ سترګو په اُوبو ځی
له ژړا دِ قراری نکا اشیم
چه هیڅ زیرمه دَ عقبا دَ سفر نکړی
د دنیا په سرای کښ ځان ګنی مقیم
عاقبت به دَ ارمان اورغوی ژوی
دَ هغو چه شیطان یار شو، نس ندیم
دَ غلیم په وَیَل ولی کړې کارُونه
که ته نه یې دَ خپل ځان سَره غلیم
دَ دانا صحبت صحت دَ رنځور زړه دی
دَ ناپوه صحبت عذاب ګنه الیم
چه راضی پخپل قسمت نه ئې حرص کړې
سکه پیدا کړه بې قدیم بل قسیم
مګر سترګی ئې دَ ګور خاوری مړې کا
موړ به نشی حرصناک په زر و سیم
غاښ مات شوَی په خوړل دَ کاڼیو ښه دی
نه یَوه نمړیَ خوړلې دَ لئیم
دَ الله الف همسا ده پر تکیه که
په ملا خم مشه مخلوق ته لکه جیم
که په خوله کلمه لولیِ نمونځ روژه کا
دروغجن دَی منافق سَره سهیم
دَ دنیا کارُونه وهم خوب او خیال دی
تعلق به پوری څه کاندیِ فهیم
چه بې حقه نور باطل ورته ښکاریږی
هم هغه سړی دانا بوله حکیم
چه موجود ئې موجودات کړه له عدمه
څه مشکل که ژوندَ وِی عظام رمیم
خوشحال کړی ئې هرڅوک پخپل خپل کاردی
په هر چا باندی ئې لطف دَی عمیم
نا امید ئې له درګاهه هیڅوک نه ځِی
تفاوت دَ نیک او بد نکا کریم
چه به چا ورسَره بد کړه ده به ښه کړه
مصطفیٰ ﷺ ته ورکړ خدای خلق عظیم
چه په خوی دَ خدای په خوی وُ صفت شوی
ځکه هسی رنګ زغمونی وُ حلیم
دَ نمرو د لمبې ئې ځکه باندِی باغ کړ
چه خلیل ؑ شو و قضا وته تسلیم
په صفت دَ کمینیَ آدم صفی شو
په صفت دَ تکبر شیطان رجیم
دَ ارشاد صابون اثر ور باندی نکا
سیه زړه دِی ازلی سیه ګلیم
په آزار ئې اسمانونه په لرزه شی
هر ظالم چه په ژړا کاندیِ یتیم
چه دایم دَ مظلومانو وینی پشومی
ظالمان به پیالې وڅښی دَ حمیم
چه په حال دَ مسکینانو ترحم کا
په هغو باندی به رحم کا رحیم
چه ولاړ نشې په غفلت عبدالقادره
که پوهیږې غنیمت دَی دال و میم

# قصیده

یاره ستا دَ هجر غم راته دریاب شو
تر نظر می د دنیا هوس سراب شو

ستا په تلو می دَ خوښۍ بساط ونغښت
مهیا راته دَ غم واړه اسباب شو

که پخوا مي ډیر دردونه وُ لیدلی
لا می ستا په جدائیِ زړه کباب شو

په معنی کښ خټکُ تیغ وُ ته ئي آب وې
غوڅول به اوس په څه کا چه بې آب شو

خدای له موړه لا پتا باندِی مَیَن وُ
چه رحلت دِ له دنیا پدا شتاب شو

دَ مخ آب ئي هر گور ډیر وُ بې حسابه
مستسقی به ئي په تش لیدو سیراب شو

زر ریزی ئي لکه گل په واجبین وه
نه به تر یو په وخت دَ داد لکه سحاب شو

دوست دښمن ئي له جماله بهره ور وُ
دَ هر چا دَ زړه ارمان دَ ده شباب شو

دُر گوهر به ئي له لعلو ریژیدُون کړ
چه گویا به په کلام با صواب شو

سپک وَیَل ئي هرگز نه وتَل له خولې نه
چه به چا وته په قهر و په عتاب شو

دَ ارمان دَ دانو ډک لکه انار ولاړ
دَ ژوندُون له باغه کله مزه یاب شو

له اندوهه رڼا ورځ لکه تیاره شوه
چه غروب دَ ده دَ کښلی مخ آفتاب شو

چه ئي خوب په پالنگ نه کیده بې گلو
په بستر دَ خاورُو څه رنگه په خواب شو

په هغو رخسارو پریوتلې خاوری
شماتت ئي چه په گلو دَ گلاب شو

چه دا هسی رنگ ځوانان پکښ پراته دی
په اسمان باندِی ډیر فخر دَ تراب شو

دَ رستم دَ اسفندیار دَ ځواب ځوان وُ
دَ قضا حکم پرې راغَی لا ځواب شو

عطارد ئي په اسمان مرثیه وایِی
دَ زهره له لاسه مات چنگ و رباب شو

په بهانه دَ بارانه څه دَه وفات کړ
فلک هم دَ نوحه گرُو په حساب شو

غواصی کوم دَ اُوښیو په دریاب کښ
نه ئي مومم معظم[1] دُر نایاب شو

په ژړا په واویلا له موړه بیل شو
بیلتون هیڅ زړه سوځی نه وکړه قصاب شو

کله دَ خپلو په دعا جنت مونده شی
سکه بې شکه وا په ده دَ جنت باب شو

درویشت کاله دَ ده عمر زر اته نوی
دَ هجرت حساب په حکم دَ کتاب شو

چه دَ ښهر ودانی وُ ځنی وَوت
سرای ته څه عبدالقادر درومی خراب شو

# قصیده

همیشه می ستا له غمه مشغولا دَه[2]
ستا له پسه راته پاتې ښادی دا ده

خپل پرَدِی را ځنی واړه کناره شول
چه تل ملَه دَه را سره اندیښنه ستا ده

---

١. معظم دَ خوشحال خان خټک له اولادې څخه وُ، دا قصیده دَ ده مرثیه ده.

٢. دا قصیده د خوشحال خان پر وفات ژړا او مرثیه ده.

پهٔ بهانه دَ آه خپل دم را ځنی درومی | له همدمو بیهوده ګله ځما ده
اُوښکی هم دَ وچیدو له ویری ولاړې | له تودې تیغنی می ګرمه تېتر لا ده
نا آشنا همیشه خوښ ګرزی هوس کا | په جهان کښ دَ غم بخره دَ اشنا ده
دَ غم تخم آشنایی دَه که ئې ګورې | معتبره و هر چا ته دا وینا ده
دَ هجران غشی په هَره سینه لک دی | چه و هر لوری ته غوږ باسم زګروا ده
څوک چه وایی تر بلا بلا وِی سخته | کله سخته تر بیلتون بله بلا دَه؟
جدائی په نابودی سړی راضی کا | له ژوندونه په مرګ مینه دَ جدا ده
دا چه وائی بد ژوندوُن تر مرګ بتر دی | اوس پرې وپوهیدم دا ونیا رشتیا ده
مرثیه به دِ په هسی مضمون وایم | چه هیڅوک پرې نه پوهیږی چه دَ چا ده
د تا درد می په بې دردو پیرځو نشی | ستا دَ درد دَ درست جهان خوښی بها ده
دَ فراق په اور دِ وسوم نَو می وچ شو | اوس می تل په وچو سترګو ستا ژړا ده
چه هر څیز دِ یادَوَم په زړه وریتیږم | لا چه ډیر می ژړوِی د تا خندا ده
زه چه ستا په تلَنی بِږغ سَره تیر نشوم | که خواریږم پس له تا دا می سزا ده
په ارمان دَ ملاقات له موږه لاړې | څموږ ستا دَ لیدو ژمنه په عقبا ده
خپل پرَدِی دربا‌ندی هیڅوک حاضر نشوه | نه دِ پاتو مال او ملک نه دِ دنیا ده
چه پیسه دِ پاتو نشوه و کفن ته | هم دا نخښنه ستا دَ جود او د سخا ده
له نا اهلو که دِ خپل وُ که پرَدِی وُ | ځنی تا لیدلې څو رنګه جفا ده
خپل شامت به ئې دلې هورې خراب کا | چه بدی کا دَ هغو بدی جزا ده
په وطن کښ مسافر غُندی وفات شو | خیلخانه ور ځنی واړه پسی شا ده
خپل دِ نه وُ چه دِ حال ورته بیان کړی | له فانی دنیا دِ وړې ډکه خوا ده
دَ دنیا خلقو خو واړه درته شا کړه | ستا تکیه پخپل ښختن پخپل پیشوا ده
بې له صبره له تسلیمه چاره نشته | موږ ور وړې په قضا دَ حق رضا ده
په حرمت دَ پاک رسولؐ چه په قران کښ | خدای په څو رنګه دَ ده کړې ثنا ده
دَ دوزخ له عذابونو په امان شې | بهشتی شې شپه او ورځ می دا دعا ده
تر دلې په هورې خوښ وې فال دِ ښه دی | خدای چه ینبې دَ خوشحال نامه پتا ده

نه یَوائی هجران لوټ عبدالقادر کړ
په هر ملک په هر دیار کښ دا غوغا ده

# ترجیع بند

دریغه دریغه دَ دنیا خونه تالا کړَی | په ژوندونی ځان بتر تر خاورُو لا کړَی
دَ غرخه غُندی له خلقه تبنتیدلی | ځان له واړو آشنایانو نا آشنا کړَی
چه په مرګ سَرَه له ځانه جدا کیږِی | هغه واړه لا تر مرګ پخوا جدا کړَي

یَو ساعت مه وَی فارغ دَ ځان له غمه　　په هوس می دَ همه خلقو خندا کړَې
لیونی شوَی چه چا نه پریښوی وَ ورته　　ودانی دَ جهان واړه پسی شا کړَی

مخ په بیدی بیدیا ونیوَی ژړلی
دَ صحرا دَ ونو پاڼی پټ خوړلی

چه آخر دِ له فانی جهانه تله شته　　څه په کار که دِ په کور کښ سپین او سره شته
که په تخت دَ پاسه کښېنې بادشاهی کړې　　عاقبت دِ بیا له تخته پریواته شته
که لښکر دِ تر حساب تر شماره تیر شی　　گمان مکړه چه دِ بې عمله مله شته
جمادات دَ جدایۍ له غمه ژاړی　　ستا لا هیڅ کله نرمی دَ خاطر نه شته
ورَځ په ورځ شیرین یاران در ځنی درومی　　وچوې دله چه لا ستا خوب او خواړه شته

مخ په بیدی بیدیا ونیوی ژړلَی
دَ صحرا دَ ونو پاڼی پټ خوړلَی

که هر څو وِی ښایسته په رنگ رنگینه　　لا له رویه، سنبل مویه، تن سیمینه
تر ښه مخ پوری دِ نور دَ سپوږمۍ هیڅ شی　　په سپوږمۍ چه پلَو واخلې و دَرینه
لطافت ئې زیات دَ گل تر لطافت دی　　په عالم ئې دَ خوبۍ خبری شینه
کښلی مخ به ئې دَ گور خاوری بدرنگ کا　　نازک تن به ئې دَ گور چمجی وخورینه
چه دا هسی احوال دَی پدا دنیا کښ　　پخپل حسن به څوک څه دماغ کوینه

مخ په بیدی بیدیا ونیوی ژړلَی
دَ صحرا دَ ونو پاڼی پټ خوړلَی

کشکی زه پدا جهان راغلَی نه وَی　　چه په داغ دَ بیلتانه داغلی نه وَی
یا می مرگ دَ هلکوالی په ساعت وَی　　چه می خپل پردی څوک پیژندلی نه وَی
یا زوولَی ړُوند په سترگو وَی له ځایه　　چه می مخ دَ هیڅ اشنا لیدلَی نه وَی
یا خبر په ښه بد مه وَی لیونَی وی　　چه دَ روغو په شماره شمیرلَی نه وَی
یا هوښیار شوی تل دَ ځان فکر کولَی　　په فکرونو دَ جهان نیولای نه وَی

مخ په بیدی بیدیا ونیوَی ژړلَی
دَ صحرا دَ ونو پاڼی پټ خوړلَی

په زړگی می دَ بیلتون لمبې بلیږی　　ځکه اوښی می دَ سترگو را تلیږی
دا اسمان چه لکه ژرنده هسی څرخی　　دَ دانو په ځای یاران پکښ دلیږی
دَ دنیا په سرای کښ ځای دَ مقام نشته　　کاروانونه په هر دم ځنی چلیږی
غافلان به په دنیا کښ خوشحالی کا　　چه دا هسی ښه مَیَن ځبله بلیږی
هر گز نور کارونه مه کړه په دنیا کښ　　چه دا هسی رنگ شیرین یاران بیلیږی

مخ په بیدی بیدیا ونیوَی ژړلَی
دَ صحرا دَ ونو پاڼی پټ خوړلَی

په ارمان به یک تنها ووزې له کوره　　خپل پردَی به درسره درومی تر گوره

پہ لحد کښې بہ دِ واچَوی یوائې غورزَوِی بہ درتہ خاوری لور لہ لورہ
تا بہ پریږدِی دوی بہ وجار وزی کور تہ پہ بیلتون بہ ئې نارې وهې پہ زورہ
کیر نکیر بہ پہ هیبت در لَرہ راشی چہ ئې دواړہ سترگی ډکی وِی لہ اورہ
نور څہ مکړہ پہ ژوندون عبدالقادرہ چہ دا حال دَی آې د زړہ پہ سترگو گورہ
مخ پہ بیدی بیدیا ونیوَی ژړلَی
دَ صحرا دَ ونو پاڼی پټ خوړلَی

# مخمس

دا څما زړگی زبون دَی دَی لہ عقلہ ډیر بیرون دَی
پہ دنیا پسی مجنون دَی څہ امید پدا ژوندوُن دَی
نن لیدَل، کاندہ بیلتون دَی
خبر شہ دَ نوحؑ لہ حالہ چہ ئې عمر وُ زر کالہ
نشو خلاص دَ مرگ لہ جالہ پہ ارمان لاړ لہ عیالہ
نن لیدَل، کاندہ بیلتون دَی
کہ څوک سیل دَ گلزار کا ننداره دَ نو بهار کا
کہ پرې غوږ کاڼہ بیدار کا[۱] عندلیب هسی چیغار کا
نن لیدَل، کاندہ بیلتون دَی
پہ پسرلی گلونہ وا شی پہ څو رنگ ئې تماشا شی
چہ خزان ور باندی راشی توری خاوری دَ بیدیا شی
نن لیدَل، کاندہ بیلتون دَی
کہ دَ مرگ خواری تر زړہ کړې کور بہ وران دَ دنیا تہ کړې
خوشحالی بہ نورہ نکړې تل بہ دا ذکر پہ خولہ کړې
نن لیدَل، کاندہ بیلتون دَی
چہ جدا یاران تر زړہ کړم پہ ژَړلُو لیمہ سَرہ کړم
څو ژوندَون پہ دنیا زہ کړم آشنائی بہ نورہ نہ کړم
نن لیدَل، کاندہ بیلتون دَی
کہ هر څو نازک بدن شی[۲] سپین تر گلو دَ سمن شی
چہ لحد دَ دہ وطن شی دَ چمجیو پہ خوردن شی
نن لیدَل، کاندہ بیلتون دَی

---

۱. کہ پرې غوږ دَ زړہ بیدار کا.

۲. لکہ گل هسی ئې تن شِی.

که څوک جوړ لوی عمارت کا ترکسریٰ ئې زیات زینت کا
په مثال ئې دَ جنت کا دَ مرگ سیند به ئې لت پت کا
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
اې چه خان او ملک نومې په دماغ په کبر درومې
تل به دا خوښی نه مومې بند به شې دَ مرگ په لومې
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
په دنیا کښې که قارون شې لا تر ده به هم افزون شې
چه و قبر ته په یون شې خالی لاس به ترې بیرون شې
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
که ته ټولی کړې نگاری ښایسته پری رخساری
پس لتا به شی یا خواری یا به شی دَ نورُو یاری
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
که سل زر دِ فرزندان شی لا به دوی په مرگ طوفان شی
ستا زړگی به پرې بریان شی لا به پاتو یتیمان شی
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
اې ځما ناپوهه دله نصیحت له مړو آخله
څو دنیا ئې ټولَوَله ولاړَل دوی دا ئې پریښوله
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
که ئې وړاندِې هاتیان ځی پسې دَی په تخت روان ځی
لور په لوری ئې سپاهیان ځی خو به گوښی له جهان ځی
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
که بادشاه دَ درست جهان شی سلطنت ئې دَ سلیمان شی
چه په حکم ئې دیوان شی ترې جدا به په ارمان شی
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
که هر څو ئې دولت ډیر شی تر حساب تر شماره تیر شی
چه دَ مرگ استواځی ویر شی[1] پرې به زهر یا گنډیر شی
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
هر چه نغته دَ خپل نس کا دَ دنیا هوا هوس کا
بیهوده چاری عبث کا فریاد هسی رنگ جرس کا
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی

۱. ویر شِی، دَ قندهار په محاوره وَر شِی.

چه به خواه ناخواه ترې ځینه　　نه دِ کا په دنیا مینه
ځان دِ تلُونَی وګڼینه　　دَ قیامت په غم دِ شینه
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
شپه او ورځ دِ عبادت کا　　ترک دِ واړه معصیت کا
ځان دِ جوړ په شریعت کا　　تل دِ زړه ته نصیحت کا
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
اې خوب وړیه زړه بیدار شه　　دَ خپل ځان په غم ګرفتار شه
له ګناهه توبه ګار شه　　تل په ذکر دَ قهار شه
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
ځبله مه تار په تاریږی　　یاران یَو تر بل ځاریږی
هیچیری مه ویزاریږی　　ویزار څه مه آزاریږی
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
چه وَوایې چا ته یاره　　نور دنیا کړه تر ده ځاره
سر ښنده دَ یار دَپاره　　زړه ساتَل غنیمت شماره
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
سترګی وخورې دواړه توری　　چه باقی په فانی پلورې
په دنیا پسې تل ښورې　　دې دنیا وته نه ګورې
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
اې چه ناست یې په تخت باندی　　په شا ځې په قهقه خاندې
ځای دِ دَی تر خاورُو لاندې　　مرګ تل دا ډنډوره کاندی
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
چه جدا له ما محرم شو　　یَو په سله می الَم شو
ځما زړه جونګړیَ دَ غم شو　　چه قائل پدا قلم شو
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
اې ځما دلبره راشه　　مانړی مه کَوه پخولا شه
وموسیږه په خندا شه　　خوا په خوا را سره بیا شه
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
ځی می اُوښی لهر لهر　　وران می شو دَ خاطر ښهر
ناست په غاړه وم دَ نهر　　دا آواز ئې کړ په جهر
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی
څوک چه غوږ پدا بیان کا　　څه امید به په جهان کا
کور به دَی دَ دنیا وران کا　　دا وَیَل به هر زمان کا
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی

که په حسن لکه نمر شی | تر یوسف ښایسته تر شی
ځو چه قبر لَره ور شی | توری خاوری ئې په سر شی
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی

زه عبدالقادر نه ښایم | چه خپل شعر چا ته نمایم
خو مَیَن پدا وینا یم | هر زمان ئې ځکه وایم
نن لیدَل، کانده بیلتون دَی

# قصیده

حاکمان او امیران دَ دې زمین | چه لیدَل شِی په دوران دَ محی الدین[1]
هیڅ حاجت دَ عیان نشته و بیان ته | خود ئې حال دَی وَ هر چا وته مبین
همگی واړه مذموم په خوی خصلت دی | پکښې یَو نشته بادشاه ته دَ تحسین
زه به هم یَو څو خبری له دُوی وایم | چه نن عقل ځما زړه ته کړې تلقین
علماؤ فضلاؤ ئې نفرت دَی | په مجلس کښې ئې ارذال کښېني مکین
دَ بل وار نه ورکوِی په پوچ ویلو | غوړ کاږه کا چه مذکور کیږی دَ دین
دَ راجپوت دَ رافضی په استقبال ځی | عالمانو ته هسک نکاندی شرین
دَ مسجد په لوری شل شی نه ور درومی | تل ئې آس په پوچو چارُو پسی زین
کله کله چه سر وَوهی په مځکه | سل منمته ږدِی په رب العالمین
څو دَ خلقو آزار ډیر کا دَ ده خپل وی | په نیک خواه دَ عالم تل وایی نفرین
دَ رشتیا خبره زهر ځنی مرینه | خوش آمد دروغ تر شهدو پر شیرین
هم هغه چه خوشامد کا مصاحب وی | لا ترې وِی په بد وَیلوُ ځنی خوړین
په میدان ئې شغالان په بریتو میږی | دَ قالین مزری مزری وی دَ قالین
تل ئې هجو دَ سخی دَ مَړَنی وِی | دَ ممسک دَ بیدلانو کا تحسین
همیشه دَ ځان صفت دَ بل غندنه | خود پسند وِی، خود نمای وی خویشتن بین
دَ محنت په ساعت ځِی تحت الثریٰ ته | دَ راحت به وخت قدم ږدِی په پروین
که دولت ئې لکه بحر بې پایان شِی | بیا ساتَل وته چین راوړی په جبین
چه فقیر ئې په وَر وَر سی ورکړه پریږده | په خواږه وَیَل ئې نکا زړه شیرین
یَو درم ئې په ځای نه درومی له کوره | تل بې ځایه ورکوَل دَ ده آئین
خرخ ئې واړه په کالو او په گینه وی | لکه ښځی آرایش کاندِی تزئین
دَ یوې روپۍ په ځای چه لس آخلی | هم هغه په رعایا کاندِی امین
دَ دهقان په خوارول ئې سترگی سرې سی | په پټی چه زراعت وَ وینی شین

---

۱. اورنگزیب عالمگیر مغولی پاچا.

پیشکاران ئې په ابرو اشارت وکا — چه ځوک وَوینی اغوستی نمری سپین
رعیت چه داد خواهۍ لَره ور ځینه — کهین واغوندی کورږدی نمری مهین
ځان او مال ئې له کفارو په امان دی — دیو بدبختو تاخت تاراج کړه مؤمنین
دَ مجرم جرس لا نه وی ثابت شوی — براتیان ئې کار په کور باندِی تعیین
رعیت دَ دُوی دښمن وِی دُوی دَ دیو — دوی و ده ته، دَی و دُوی ته کا کمین
هر ظالم چه تعدیٰ په رعیت کا — په قیامت به ئې مقام کاندِی سجین

که باور دِ پدا نشِی ورسه گوره
په قرآن کښ "بئسَ مَثوَی الظالمِین"

# قصیده

دا کارُونه چه نن کانده عیانی دی — هیڅ په خوا په خاطر نه وُ اسمانی دی
چه په وهم فهم نه هغه ښکاریږی — هوښیار ځکه همیشه په حیرانی دی
گهې هسی کار ښکاره شی چه غمجن شی — گاه کارُونه چه سبب دَ شادمانی دی
ساقی راوړه پیاله چه راته یَو شی — غم ښادی ثبات هیڅ نه لَرِی آنی دی
نن نسیم دَ پیښبور له لیوری راغَی — ځو وینا ئې راته کړی زبانی دی
چه نن شپه مهمندُو وَوَهلې توری — چه وَهلِی نه افغان نه تورانی دی
لیند و غښ په غشیو وکړ کشاد کاښی — په سر تور توری وَهِی جانفشانی دی
چه لښکری دَ مظلومو اعانت کا — خدای ئې مل شه دا لښکری رحمانی دی
لاله زار ئې شگفته په سرَه اهاړ کړ — هر چه دا بهار نه گوری زندانی دی
دَ باړې اوُبه ئې سرې لکه شراب کړې — دَ سربند کاښی همه ارغوانی دی
یگانه زلمیو غښ وَبَله وکړ — چه وهَه فلانی وهه هندوستانی دی
توره شپه په تورو ورځ لکه سبا شوه — ځلیدَل ئې لکه برق نیسانی دی
همیشه پښتون مهمندو دَی دروند کړی — که سبب ئې دَ خفت میر افغانی دی
چه په طمعه دَ دنیا کاندِی جنگونه — رنگ ئې ورک شه که رستم دستانی دی
یوسفزی چی زر ووینی ننگ پریږدی — حریفان دِی طامعان دِی نفسانی دی
په خوله هر پښتون دَ ننگ خبری کاندی — ننگ هغه کا چه نانی ندی جانی دی
زرنانی شه صدقه تر جانی ځوانه — پښتون ډیر دی اما څه په کار نانی دی
دا متل دی تیغ په اصل غوځوَل کا — دَ مهمندو توری اوس ندی کانی دی
افریدی شنواری جنگ په غرونو کاندی — غوریه خیل په میدان جنگ کا میدانی دی
مخ ئې ندَی دَ کتو رنځ دِ پرې ساز شی — چه نفاق کا همیشه په پښیمانی دی
فریفته ئې په وَیَل مشه نفاق دی — هغه ځوک چه دَ لښکر په ویرانی دی
دَ مغل له دې لښکرو پروا مکړه — اتفاق ئې سَره نشته ځان ځانی دی
په قسم ئې مبادا چه باور وکړې — سوگندُونه ئې دامونه شیطانی دی

له بادشاه شاهزادګانو چه وسواس دی اخته شوی دوی په جنګ سلطانی دی
دَ سرونو نردبان ساز کړی باندی خېژی مرتبې ته ختل نه په آسانی دی
نه له چا ئې طمع شِې نه له چا ويره
څو څبرى رشتيا کړی کرلانې دی

# قطعه

زه چه هسی پخپل ځان باندی مَيَن يم دَ جانان دی په جانان باندِی مَيَن يم
دَ خزان ميوه بهار دَ بهار دَی دَی تر بهاره په خزان باندِی مَيَن يم

مه دِ وينم لباسی په سترګو تورُو زه پتا باندِی مَيَن يم ته په نورُو
هيڅ حرمت ئې لکه حق وُ په ځای نکړ ميلمه شوَی وُ يوسف په کور دَ کورُو
چه ښۀ خوی په څه پروا کړم له بدخويو قيمت لَړ نه شو دَ دُر په اُوبو شورُوْ

دَ شيخ شعدی لاهوری خليفه حضرت نبوی دَ وفات تاريخ:
شيخ شعدی قدوۀ اهل يقين چون منور گشت ازو زير زمين
از خرد جستم رحلتش در جوابم گفت "شيخ مؤمنين"
(۱۰۰٦هـ)

تاريخ د وبا د کال:
په هر کاله کښ دَ مرګ ماتم دِی وبا نيولَی اکثر عالم دی
ښه ښه ياران ئې ځله جدا کړل تاريخ ئې راغلی چه "کال دَ غم" دی
(۱۰۹۵)

دَ مجنون په مخه سپَی په کوڅه راغی چه په رنځ دَ پمن والی مبتلا وُ
هغه دم ئې تر پښو پريوت مخ ئې کښل کړ چه په چم کښ ئې ليدلی د ليلا وُ

دا مثنوی دَ نصيحت نامې دَ کتاب له ابتدا څخه دی، دا نصيحت نامه ټول دَ تجنيس په صنعت ده.[۱]
که د رحم نظر وکړې ربه ما ته د زړه مينه می به کړې له غيره ما ته
ربه ته ځما څښتن زه بنده ستا يم تا به غواړم، تا به بولم تا به ستايم
ته قادر يې ښه صورت ورکړې و ما ته توان د ښو خبرو غواړم را کړه ما ته

---

۱. افسوس چه دا نصيحت نامه موږ ته نده را رسيدلې، فقط دغه څو دَ سر بيتونه ئې په يَوه ديوان کښ ليکلی دی.

په نسیم دَ محبت لکه گل وایم — په تجنیس په نصیحت پندونه وایم
رساله به درته وایم په څو وره — و معنو ته ئې میړه شه قدم وره



## مربع

(دَ خپل پلار خوشحال خان خټک په ستاینه او دعا کښې)

خدای ئې تل لکه خپل نوم لَره خوشحاله — خوشحالی ئې په نصیب کړه لایزاله
خردمند نیکو سیرت نیکو مقاله — خود پوهیږې هیڅ پښتون ئې نه وُ سیاله

ورکول ئې بې منته دَ حاتم وُ — ورته يَو سفال و سنگ دینار درم وُ
وای په ځان دَ هغه چا چه په ده گرم وُ — ورځ او شپه به ئې کاوه باندِې ارغاله

شرم و ننگ لکه دَ ده وُ دَ چا نه وُ — شجاعت لکه رستم هسی دَ ده وُ
شور دَ ننگی ئې په سر کښې پروت په زړه وُ — شان دَ ده دَی در ښکاره دَ ده تر قاله

حال دَ هر سړی ښکاره دَی تر مقاله — حل دَ هر مشکل کاوه شی له امواله
حد دَ چا چه ئې ځواب کاوه له قاله — حقیقت په مجاز نقل دَی محاله

خار دَ سترگو دَ دښمن پر خپل بهار وُ — خاموشی حلم ئې ډیر درلود بردبار وُ
خپل پردی له ده همه شکرگزار وُ — خټک درست دَ ده په دور وُ نهاله

اندیښنه ئې وه هر گوره ډیره لویه — اجنبی به ئې کم نه گاڼه تر زویه
افغان ده غُندِی چه وزیږی بل بویه — آزاده وُ هیڅ ئې نه وړ مال مناله

نوم ئې لاړوُ تر دکن تر قندهاره — نه وُ بل هسی نامی له زمینداره
نیم درم ئې هم کور نه ساته له عاره — نور هیڅ نه وُ دَ ده بې توری بې ډاله

خپل خپلوان ور ځنی واړه وه خوشنوده — خوښ خورم وه همگی دَ ده له جوده
خاص او عام وه تل سودمن دَ ده له سوده — خوش کلام وُ خوش معاش وُ خوش خصاله

تواضع ئې دَ هر چا کړه بې مقداره — تر اندازه کم زیات نه وُ د ده کاره
تل به ده کړ کبرجن په کبر خواره — تکبر په کبرجنو دَی ملاله

کلام ډیر دَ ده شیرین وُ تر نباته
کار ئې د اوُترحیاته تر مماته

کم دَ ده تر خولې ترخه وتل و چاته
کرم وکړ په ده باندِی ذوالجلاله

اور دننه دَ عاشق په زړه بلیږِی
ارمان دا دَی چه څوک لَږ پدا پوهیږی

او رنگین شعر پسې ځنی ښکاریږی
اوس نور څه وایم دَ هسی حال احواله

لام او بې ئې دَ دلبرُو دِی ستایلی
لږ دَ ډیره ما دَ ده حال ویلی

لعل او دُر ئې دَ وینا په تار پییلی
لکه څوک چه دَ یار مخ کا نمر مثاله

(کتاب بشپر شُو)

# دَ ځنو کلماتُو املا

په دې کتاب کښې موږ دَ لغاتو او کلماتو په ليک کښې ډير ځله د اصلي املا لحاظ کړَی دَی، په اصلي قلمي نسخو کښې ډيری کلمې يَو ځای يَو راز بل ځای بل راز راغلي دي، دَ مفغناتو املا کله په مغغن ډول او کله په اصلي ډول دَه، دغسی هم دَ ځنو کلماتو دَ مختلفو قومونو دَ محاورو اشکال پکښې شته، مثلاً مصلي کله پخپل عربي ډول او کله مفغنه مسله ليکلې، دغسی هم ويجاړ، اوجاړ - اوربل، وربل - بډغ، غبږ - محلت، مالت - اړاند، هړاند - دواړه ډَوله راغلي دِي.

په داسی کلماتو کښې موږ دَ اصل کتاب ډَول غوره کَی، ځکه چه دواړه ډولونه ئې صحيح دِي، نوره املا دَ اوسنۍ مشهوری املا سَره فرق نلَرِي، دَ مجهولي او معروفي ياء تميز شوی، او ضمير غائب (ئې) او ضمير مفرد د متلکم (يې) ليکل شوَی دَی.

# دَ پښتو نادر لغات

**الف**

امته: محتاج، پاسدار

انند: خوشحالی، آرام

اسره: طمع، توقع

اوری: اوریږی

اټاله: ایسار، حمله

اوښار: ښرگند، ښکاره

اهاړ: د گرمی موده

ارجل: ماتل، ایسار

استوائي: ريبار، قاصد

آغله: ښکلی

ارغال: يرغل، حمله

ابلی: کاڼيزه مځکه

**ب**

بورجل: کوڅه

بړبړ: هر کله

بډایي: فخر، غرور

بډی: رشوت

بلوسل: تعرض کول

بڼ: باغ، ځنگل

بړی: ډير کم مقدار

بید بیدیا: ویجاړ بیابان

بړبوگی: گردباد

بدر: مکمله سپوږمی، چنار

بشر: بنده

بليږدی: تاوول، نغښتل

بول: قول، وعده

برند: نيغ کتونکی

بکس: لږ، زره

بنبره: مچۍ، غالبوزه

بور: پړانگ

**پ**

پيچومی: لوړتیا، بلندی

پخښو: ازاد، خوشی شوی، آرام

پوټی: لږ شان

پهوټه: يو ډول هندی خټکی

پخساک: کړاو، زړه چاودون

پهی: پټۍ

پت: غیرت، ننگ

پاړو: منافق، بدچلن

پیرل: اخستل

پريونه: پروين

پرتلی: بارگير

پشومی: ښنبل

پهوړه: خیرنه

پټی: د مځکی یوه برخه

پلور: خرڅول

**ت**

تالا: تاراج

تکړ: مظبوط، چست، بهادر

تورتم: تاريکی

تنی: د چا عزت ساتل

تروټ: تاوان

تنکی: نازک، تروتازه

تروړی: قرچه

تلیږی: په غوړو کی اشیدل

ترښځ: پانه

تلې: غولی، میدان

تیغنه: نوی بټی

ترو: تر هغه وخته

**ټ**

ټگی: فریب، مکر

ټپکی: غار، خندق

ټمیږی: غپیدل، عبث خبری کول

ټانگ: آوازه

ټوکیدل: د فصل سر وهل

**ج**

جند: اصل، زړه وهلی

جگی جگی: مرحبا

جونگړی: کوډله

جړی: د باران اونی، زهر موره

جوک: وزن

**چ**

چر: طرز، عادت، د چوغکی نارې

چم: کوڅه، محله

چومی: د لیروک مرض

چوړا: خراب، برباد

**څ**

څله: یقین، اعتبار

څربښت: د غټ والی، شلنډ والی عمل

څاروی: چارپای

څوکه: جانب، طرف

څړه: مجرد، د سپی حمله

څرخیدل: څرخ وهل

څکړل: تړلی

څڅواکی: قطره

**ځ**

ځله: پاتی، مضطرب

ځور: رنځ، تکلیف

ځیر: تیز بین، دقیق

**خ**

خلقې: قدرتی، ازلی

خیر: خجل، شرمنده

خویږی: خوږ یږی

خځله: خس

خرخښه: فتنه، وسوه

خیال: فخر او مباهات، آرایش کول

خت: کمیس

خوشی: بیهوده، عبث، بیجا

خرغڅکی: کینه لرونگی

خپسر: آزاد، سربخود

**د**

داند: جنجال، غوبل

درنگ: معطلی، مکث

دوک: حسد، عناد

دمه: مکث، آرام

دښنه: دښمن

درغلول: محصور کول

دوند: غبار آلود

دړی وړی: پارچه پارچه کول

دلیری: اوریدل

دربشت: یو ډول لوبه

**ډ**

ډیران: د انبارو ځای

ډنډوره: جارچی

ډاډ: اطمینان، تسلی

ډال: سپر

**ر**

راغله: راتلل

رسۍ: ریسمان

ربړل: په عذابول

روخ: مقابله

روک: اختلاس

**ز**

زار: قربان، فدا

زباد: ثابت، پایدار

زرځی: کبږې سترګی

زیار: زحمت کش

زغمونی: جازب

**ړ**

ړنګ: خراب،ویران

**ژ**

ژمنه: وعده

ژواک: ژوند، حیات

ژوی: جاندار، حیوان

**س**

سوبه: فتح، ظفر

سته: ثروت، هستی

سیاره: نفس تنګی

سیند: رود

سپور: سوار، راکب

سیال: همسر

سخ: بخت، سعادت

سمخ: بی حیا

ستۍ: په عشق کی سوځیدلی

ستنه: شا ته کیدل

سروب: بالکل، عیناً

ستون: معطل

سیلۍ: طوفان باد

سوړه: غار، سوری

سیپۍ: صدف

سکه: چهره، قیافه

**ش**

شند: شاهین (مرغه)

شپیلۍ: د نی تولکه

شیتۍ: پیکان

شارونۍ: مینا (مرغه)

شلانډه: خادمه، سمسره

شین شین: ښکلیا

شومی: جرعه کول

**ښ**

ښانک: د لرګی طبق

## غ

غاښې: کوتل

غاړه غړې: بغل گیری

غړې: زور، طاقت

غنه: نازک اغزی، لون

غوځ: پرې، قطع

## ک

کانده: وروسته، پسته

کاختې: قحطی

کوگل: سینه

کوکه: چغه، فریاد

کروری: ریز مریز

کاسیر: بدکار

کښل: ایستل، لیکل

کاڼ: کان، معدن

کوټ: حصار، انبار

کهنه: گنجایش

کوپارونه: د کفر کارونه

کویلی کوئی: یعنی کویږی او کوکو لری

کړه وړه: شکل او شباهت

کاڼې: تیگی، ډبری

## گ

گند: خس او خاشاک

گرزاند: گرځندوکی

گرت: د گوتو په مینځ کی فاصله

گړنگ: لوړ دیوال

گوښې: یوائې، علیحده

گوټ: کنج، زاویه

گړی: یو ساعت

## ق

قست: د کار کولو اراده

قبلې: منل

## ل

لونل: شیندل

لال: یو ډول شیرین انگور

لگیا: مصروف

لښل: سفر کول، کوچ کول

لیږدی: کوچ کول

لولۍ: ډمه، بدکاره ښځه

لوړل: قسم خوړل

للیږی: شاهدی ورکول

## م

مانه: شکوه، گیله

مخې: مقابل، سیال

مرجوښا: غواص، غوټه وهونکی

مښود: کوشش، سعی

مله: پرندگان

منگور: مار

میزر: د غله گدام

مښلې: زوړ

مشال: رڼا، شمع، چراغ

مهال: موقع، محل

مټ: قوت، سرعت

مرغچچې: خرمهره

مکیز: ناز، عشو

**ن**

نشت: سپک، حقیر

نمنځن: محترم، عزتمند

نمنځنه: عزت کول

ناتار: ظلم، جبر

نمری: لباس، جامې

نولیږی: غمگین ک[illegible]



نبات: وابنه،، ترکاری

نتلی: وهل، ټکول

نغته: راپارونه، تحریک

نڅا: گډا، رقص

نخول: زغمل، نولول

نالې: د اوبو ایستلو لار

نومړی: مشهور، نامتو

نڅور: خلاصه، انجام، نتیجه

نمړی: لقمه، نواله

**و**

ورټ ورټ: ژړیدنه

وگړی: انسان، خلق، عالم

وچولی: تندی

ویل: یو قسم کالی

ولجه: لوټ، مال، غنیمت

ول ول: گنجی گنجی

ورخونه: ناله، د اوبو بند، اړخ

ونه: درخته، د قسم کلمه

ویاند: ویونکی، گویا

وزله: بهانه،چاره، سبب

**هـ**

هواد: وطن، ملک، په فاصله

هړاند: بوخت، لگیا

هرگور: خامخا، البته

هیداد: دړکه، بخرداری

هل: یوې، د فقیر آواز

هوډیالی: د عرادې او عزم خاوند

**ی**

یو: په ټوله، متحد

یون: رفتار، سفر، تلنه